# په پښتو ادب کې دمثنوی پیدایښت ،
# تاریخي او تکاملي سیر

لیکوال

پوهنوال جلال الدین



۱۳۷۸

## دکتاب پيژندنه :

* - دکتاب نوم : په پښتو ادب کې دمثنوي پيدايست . تاريخي او تکاملي سير
* - ليکوال : پوهنوال جلال الدين
* - دچاپ ګال ۱۳۷۸ - ۱۹۹۹م
- خپروونکی : دافغانستان دمطالعاتو مرکز
* - دچاپ ځای : دانش کتاب پلورنځی - پېښور
* - مهتمم او کمپوزر : محمدطاهر بابړي





فهرست

# سریزه

دپښتو ځانګې درنو استادانو په هغه غونډه کې چې دپوهنـدوی نـور احمدشـاکر په مشري په ۱۳۵۹ ش کال جـوړه شـوې وه اودیـوې لـوړې علمـي رتبې کـاندید استادانو ته دتحقیق اوڅیړنې له پاره موضوع ټاکـې تاکل کیدې ماته هم په همدغـه غونډه کې" په پښتوادب کې د مثنوي پیدایښت تاریخي سیراوتکامل " موضوع وټاکـل شوه چې دپوهاندعبدالرزاق زهیر په لارښودنه خپله څیړنه بشپړه کـړم مخکـې لـه دې چې په خپله اصلي موضوع پیل وکړم ځینې پوښتنې اومجـهولې نکتې مـې پـه ذهن کې پیداکیدې اوهغه داوې چې مثنوي به دلومړي ځل دپـاره دچالـه خوانـه په کوم ځای کې پیل شوې وي؟ اوا مثنوي دعربو ایجاد دی اوکه دعجمو؟

ددې پوښتنو دحل اوځواب پیداکولو په غرض مې دخپل لارښود استاد پوهـاند زهیر په مشوره داغوره وګڼله چې دمثنـوي دپیدایـښت اولرغونتـوب پـه برخـه کـې مختلفې منابع وګورم دپوهانو اومستشرقینو نظریې ځانته معلومې کړم وروسته پـه دري ادب کې دموجودو خوندي آثارو په رڼاکې مثنوي اوهم یې مختلـف فورمونـه اواوښتونکیو ته وړاندې کړم له دې وروسته به پخپله اصلي موضوع پیـل وکـړم څکه په پښتو ادب کې دموجوده موادو له مخې دپنځمې هجـري پیړۍ نـه دمخـه دمثنوي بیلګه نه لرو

ددې موضوع دتحقیق اوڅیړنې په لړکې سربیره پر لارښوداستاد پوهـاند زهـیر چې خپلې عالمانه لارښودنې یې پـه ډیرلـوراوپـیروزوینې راتـه کـړې اودهیـڅ ډول معنوي مرستې دریغ یې نه دی کړی ، دپوهاند رشاد دعلمي تجربو او پراخه علمـي معلوماتو څخه مې چې حقـاً یـې لـوی ګټوره استفاده کـړې اودواړوپوهـاندانو پـه تحقیق اوڅیړنه کې راته مفیدې لارښوونې کړې او دڅیړنې دمیتود په سـمولارو یـې

برابر کړی یم دموضوع دڅرګندیدواو روښانتیا په غرض یې ګټورماخذ راښودلی زما دضرورت وړ کتابونه که ورسره و هغه یې زما په اختیار کې پرېښودي دي .

داهم دیادولو وړ بولم چې په پښتوادب کې دمثنوي دمختلفو فورمونو دبیلګومرسته راسره دافغانستان دعلومو اکاډمۍ غړوهریو ښاغلوحبیب الله رفیع اوزلمی هیوادمل کړې ده . زه ددوی له دې مرستو ډېره مننه کوم

اوس راځم دمثنوي پیدایښت ته چې دعلمي څېړنې په لړ کې داواقعیت څرګندشي چې مثنوي چاوپه کوم ځای کی دلومړي ځل دپاره په عجموکې منځ ته راوړې اویا په عربو کې ؟

ددې واقعیت درابرسیره کولوله پاره مې مختلف منابع ولټول خودپلټنې په لړ کې یوې واحدې نتیجې ته ونه رسیدم .

دمثنوي دپیدایښت په هکله دمحققینو ترمنځ دنظریواختلاف شته یو شمیرایراني اوغیرایراني محققین ددې نظرېې پیروي کوي چې مثنوي اساسا اوبدوا په دري ادب کې منځ ته راغلی اوله ایرانیانو څخه عربو په عاریت اخیستی دی یعنې دمثنوي په نظمولوکې عربودخراسانیانو تقلید اوپیروي کړې ده .له بلې خوایوشمیر-محققین دلومړنی ډلې برخلاف ددې نظرېې پیروي کوي چې مثنوي دلومړي ځل دپاره په عربوکې منځ ته راغلې بیاوروسته عجموهغې نه پیروي کړیده اوخراسانیان دمثنوي په بسط اوتکامل اوارتقاکې له عربو څخه دمخه تللی دي زه دغه محققین په دوودلو ویشم هغه ډله چې دمثنوي پیدایښت په دي ادب کې ګڼي دالف ډلې په نامه یادوم . هغه ډله چې په عربو کې د مثنوي دپیدایښت طرفداري کوي اوبسط تکامل اوارتقایې په عجموپورې مربوطوي . دادي لاندې دهرې ډلې نظرېې په لنډ ډول راوړم

## دالف ډلې پوهانو نظریې :

١ ددبیر عجم مولف اصغرعلی روحي دلاهور داسلامیه کالج دشرقي ژبوپروفیسر چې دبیرعجم یې په ۱۹۲۸ م کې تالیف کړی دخپل کتاب په ( ٦١-٦٢) مخونوکې دمثنوي ترعنوان لاندې داسې لیکي:

" د مثنوي بنا په مفردومستقلو بیتونوباندې ده . دهغوی په جمله تصریع لازمه او هغې ته مزدوج هم وایي اودقصیدې اوغزلې په نسبت اساني لري اودغه ډول په فارسي ژبې پورې مختص دی په عربي کې یې بیلګه نشته ځینو مولدینو دعجمو په تقلید و پیروي په عربي کې هم کم کم په دغه ډول کې په تکلیف شعر ویلی دی .

ولي چندان زره وړونکی نه دي اوداکاردي ته ورته دی لکــه چــې ځینـو اهـل عجمو په دې وختونوکې په فارسي دغربیانو په پیروي دداسې نظـم طـرح منځ تـه راوړه چې دمتعارفـه اوزا نـو روي او قــافيې دقیـد نـه بـالکل خـلاص دي او زمـوږ دشرقیانو په مذاق برابرنه راځي ، دمثنوي بنا پرمخصوصو اوزا نو اینبودل شـوې ده اوزیاترو په متقارب هزج رمل اوسریع بحرونوکې ویلي دی رزم یې به متقارب بحـر عشق اومینه یې په هزج بحر اوتصوف دهزج اورمل بحرونو سره خاص مناسبت لـري چې دنوروبحرونو سره نشته او په دې بحرونوکې له مسدس الارکان څخه پرته نورنـه دي راوړي (۱) زیاتره تذکره لیکونکي په دې عقیده دي چې په رزمیه داســتانوکې له حکیم فردوسي اودعشق ومحبت په افسانوکې له شیخ نظـامي څخـه نـورو غـوره لاس نه درلود (۲)

۲- دمثنوي په باب دادوارد براون نظریه :

براون د " تاریخ ادبـي ایـران " دلومړي ټوک پـه (۶۸۹-۶۹۰) مخونوکـې چـې دعلي پاچا صالح له خوانه په فارسي ترجمه تحشیه اوتعلیق شوی دی داسې لیکي :

" دایران عربي ویونکو شاعرانوکله کله دشعرپه دولونوکې هغه برخه چې مختص په فارسي پورې وه په کاروړې ده. خاصتا مثنوي اوغزل دمثنوي شه مثال چې په عربي کې یې مزدوجـه بـولي دیتمهٔ الدهـرپـه دریم جزمـخ (۲۳) کـې دابوالفضل السکزي دسرگذشت په برخه کې راغلی دي

وایې ابوالفضل السکزي زیاته مینه درلوده چـې فارسـي ضـرب المثلونـه پـه عربـي ترجمه کړي اودغه فارسي امثال چې په عرب ترجمه شوي وي . دمثنوي پــه قــالب کې په عربي نظم راوړي اولیکونکي ته یاد نه دي چې یې ددغـه ډول نظـم سـاری بل ځای کې په عربي کې لیدلی وي . او دهغې فارسي اصل په اسانی سره کــولای شو چې پیداکړولکه

جواب ازبوگذشت چه یک گرچه هزار کز ( لمـاء فـوق عريـق طمـا - فقـاب قنات والف سوا) (۳)

همدارنگه براون د " تاریخ ادبیات ایران " په بـل ټوک کـې لـه فردوسـي څخـه نیولی ترسعدي پورې) فتح الله مجتبایي ترجمه اوتحشیه په (۳۴-۳۵) مخونـو کـې دمثنوي په باب ځینی مطالب څرگندوي چې مثنوي پـورې متعلـق مـهم ټکـی یـې دلته راوړم :

" دشعري فورمونو له جملې څخه قصیـده اوقطعـه ایرانیـانو لـه عربـو څخـه پـه عاریت اخیستی دي له اسلام څخه مخکـې معلقـات سـبعه دعربـو ددې ډول شعر

اصلي ښکلې دي چې وروسته په دې ډول شعراوغزل کې ایرانیانو بدلون راوست له بلې څواخخه رباعی اومثنوي (یا مزدوجه چې په هغې کې دیو بیت دواړه نیم بیتی سره همقافیه وي اوهربیت یې جلا مستقله قافیه لري) په اصل کې دایرانیانو له اختراعاتو او ابداعاتو څخه دي . په هره اندازه چې عروض اوقافیه په فارسي کې په نوي نظم دعربي په سبک راغلی وي دشعر خینې اقسام ، لکه رباعی اومثنوي دظواهرو دحکم په امر خاص پخپله خراسانیانو پورې اړه لري (۴).

داکترذبیح الله صفا د "گنج سخن" دلومړی ټوک دسریزې په (۳۳-۳۴-۳۵) مخونوکې لیکي "دساساني شاهنشاهي له سقوط نه وروسته پهلوي ژبه دمملکت اريايي رسمي ژبه وه ولې دعربو غلبې اودعربي ژبې مخ په زیاتیدو رواج ددې مخنیوي ونه کړ اوځینو غیراسلامی اريايي ټولنو چې دځلورمې هجرې پېړی په اواخروکې یې شمیر په خراسان کې ډیر اوپه خینو سیموکې له مسلمانانوڅخه زیات وو په پهلوي لهجه اوخط یاسریاني خپلو تالیفاتوته دوام ورکړ نورې لهجې هم موجودې وي چې دهغوي سریع بدلون اوکډون له عربي ژبې سره ادامه درلوده . په دغولهجو کې داشعاروویل رواج وو . اودبعضولهجو. لکه کردي اوطبري (۵) کازروني (۶) اونوروسحلي لهجو (۷) لیکلي بیتونه موجود دي . ددغو بیتونو په زیاتروبرخوکې دشعر بدلون له پخوانی حاله څخه نوي حالت ته خرکندېدی په هغوکې قافیه شته او دهجا ګانو دشمیرتناسب اوهم یې په نظم کې داوږدو اولنډو هجاګانونظیم ښکاره دی

په همدې وخت کې ایرانیان په عربي ژبې اوادب مصروف وو او پخپله یې په عربي ژبه شعر وایه.په هغه اندازه چې خراسانیان له عربي ژبې اودب نه متاثره شول په هماغه اندازه دحراسان ژبې اوادب په عربي ژبې تاثیر واچاوه . شعر دپخوانی حالت څخه تغیر پیداکړ اوتازه شکل یې غوره کړ یعنې ددې نه وروسته دفارسي دادبي شعر اساس دهجاګانو دشمیر په تناسب داوږدو او لنډو هجاګانوددقیق تنظیم په رعایت منځ ته راغی . اوله دې امله په عروضي قالبونواوښتو سونوکې یې دتطبیق امکان پیداکړ اوایرانیانو لوړی ډول چې خپل شعري اوزان دعروضي اوزانو داصولو یا فروعو سره تطبیق کړي حتی په اوزانو اوبحرونو پورې متعلق قواعد او اصطلاحات دعربي عروضو څخه په عاریت واخلي . ولې دیادونې وړنکته داده چې دفارسي اوزانو تطبیق دعروضي قالبونو په چوکاټ کې اودقواعدو اواصطلاحاتو په عاریت اخیستل هیڅکله له عربي اوزانو څخه تقلید او پیروي نه ده . په بل عبارت دفارسي شعر دعربي اوزانو په تقلید اوپیروي نه دې جوړ شوی اوهیڅ ډول قطعي شباهت دعربي اوفارسي اوزانو ترمنځ نه دی موجود. مګرپه هغوسواردوکې چې

عربي ویونکوشاعرانو ایراني اوزان ، لکه متقارب محذوف یا مقصور بحر یا هزج مسدس محذوف ومقصور اودترانی (رباعي ) وزن له خراسانیانو څخه اخیستي اویاداچې خراسانیانو دعربي ځینو خاصو اوزانو په تقلید اوپیروي لاس پورې کړی اوهغه یې دتکلف له لارې په فارسي شعر کې ځای کړي دي "(۸)

## د، ب ، دلې پوهانو نظریې :

۱ دشعرالعجم مؤلف شبلي نعماني دشعرالعجم په څلورم ټوک کې چې دسید محمد تقی فخرداعی گیلاني له خوا فارسي ترجمه شوی دی . دهمدغه ټوک په (۱۹۱-۱۹۲) مخونوکې مثنوي په باب داسې لیکي

" دغه مطلب چې مثنوي دچاله خوانه اوځرنگه په خراسان کې پیداشوی اوهغه دخراسانیانو له ایجاداتوڅخه دی یایې له عربو څخه اخیستي دی . سم ښکاره نه دی . خو څه چې ښکاره دی تر هغه وخته پورې په عربوکې دمثنوي په باب کوم شی نه و. البته رجزیدې ملحوظ چې هربیت یې له بل بیت څخه بیل دي . وقایع اومطالب مسلسل په هغې کې ذکر کیږي کولای شو چې مثنوي یې وبولواوهغه دبني امیه په عصرکې تردې اندازې بسط اووسعت پیداکړی وچې سل بیتی ارجوزې هم موجودې وې . درویه اوالعجاج طویل الذیل رجزونه زمونږ سره شته . علاوه پردې دعباسیانو په دوره کې دالمعتز زوی عبدالله دښکارپه برخه کې یود شرح لیکلې ده چې هغې ته یو مختصر مثنوی ویلای شو . مطلب داکه چیرې ووایو چې پارسیان خپله دمثنوی موجد نه وو. بلکه له رجزڅخه یې تقلید اوپیروي کړې ده دغه تقلید اوپیروي باید له اجتهادڅخه لوړه وگڼو. ځکه په عربوکې تراوسه پورې یوبسیط مثنوي هم په شاعرانه سبک نه دی لیکل شوی .

ولې دخراساني شاعرانو څخه په زرونو عالي اوممتاز مثنویات موجود اودنړولې نړۍ داستفادې وړدي" (۹)

۲ زین العابدین موتمن د " تحول شعر فارسي " ترعنوان لاندې دخپل کتاب په (۱۰٦مخ )کې دمثنوي په باب ځینې مطالب لري چې مهم ټکي یې لاندې نقلوم :

" ځینې داسې گمان کوي چې مثنوي دلومړي ځل دپاره په خراسان کې منځ ته راغلی او وروسته یې په عربوکې رواج پیداکړی دی . چې خراسانیانو دتاریخي اخلاقي اوداستاني مطالبو په شرح کې له مثنوي څخه پراخه استقاده کړې اودغه

ډول شعریې یوې نوې مرحلې ته داخل کړی دی اوشبلی نعمانی دشعر العجم دکتاب مؤلف په قول دخراسانیانو تقلید اوپیروي له اجتهاد څخه لوړه ده. خراساني شاعرانوپه حماسه ،اخلاق ، تصوف اونوروکې داسې مثنویات نظم کړي دي چې نړیوال شهرت لري. حال داچې تردې وخته پورې په عربوکې مثنوي په دې شکل اوصورت منځ ته نه دی راغلی. (۱۰)

## ۳ دهرمان اته الماني مستشرق نظریه :

اته "دتاریخ ادبیات فارسي " مؤلف - چې درضازاده شفق له خواترجمه اوحواشي شوی دی. د " آغازشعردري " ترعنوان لاندې دنوموړي کتاب په (۲۳۲۴) مخونوکې لیکي:

" سره له دې چې داډول قطعاتً چې دلرغونو شاعرانوڅخه ددوهمې هجري دخلاصیدونه وروسته دڅلورمې هجري پیړۍ پورې موږ ته رسیدلی معدوددي خوسره له دې هم کولای شوچې له دغو نمونو څخه دفارسي شعر په عمده شکلونو- چې په وروستیوپیړیوکې یې انکشاف اوترقي وکړه – وپوهیږو، لکه قصیده چې په دووبرخویعنی هجوبات اومراثي ، قطعه - غزل چې په دروبرخویعنی عشقی ، دیني اوخمریات اومثنوي چې هغه هم درې ډولونه لري یعنی داستاني ، تاریخي ، قصصي اوپندوصفي. اودغه آخرنی ډول ممکن اخلاقي یا عرفاني یاپه دواړوبرخومشتمل وي اورباعي. البته زیاتره پورتنی ډولونه دعربي ترتاثیرلاندې وو. اویوازې رباعي دخراسانیانو دابتکاراتو څخه شمیرل کیږي .(۱۱) حتی پیزي له فردوسي دمخه ټول شاعران په فارسي ادب کې دعربي سبک پیروکښي. (۱۲)

اته دپیزي دپورتنی نظرپه برخه کې دخپل کتاب ( تاریخ ادبیات فارسي ) په ۲۴ مخ کې داسې لیکي :

" دغه نظردبدلون اوتغیراتو له مخې هیڅکله بې ځایه نه دی اوموضوع پخپل ذات کې باید دتعجب وړنه وي ځکه په هماغه لومړنیو پیړیوکې دوه ایالتونه یعنی ماوراء النهراوخراسان چې دفارسي شعرزانکووه دعربي ویونکیو شاعرانوکانون و.

وګ : مقاله، باربیه دمه نارد دفرانسې په آسیایی مجله، ۱۸۵۳ م کال ،۱٦ مخ . همدارنګه ۱۸۵۴ م کال ، ۲۹۱ مخ . د(لوحهٔ اذلی خراسان اوماوراء النهر) ترعنوان لاندې فارسي ویونکی شاعران بالطبع دهغوترنفوذاوتاثیر لاندې وو چې قدامت یې درلود له دې امله دملاحظې وړده لکه چې تذکره لیکونکیو ویلي دي تقریباً ټولو صفاري اوساماني شاعرانو له فارسي شعر سره یوځای عربي شعروایه یعنی په دواړوژبوکې استادان وو، دلومړۍ ځل دپاره درودکي په ظهور- چې

دشهیدمعاصراوملکري و- کولی شو دی په حقه لومړنـــی فارسـي ژبې رسـمي شـاعر وپيژنو.

دفارسي شعر له اسارت څخه مخ په خلاصیدوکیږي اوتدریجاً پخپله مستقل مسـیر مخکې نیسي اوددې شاعرله برکته ده چې دفارسي نظم اصـول اومسـتحکم قواعـد قبلوي ."

۴ دمثنوي په باب ددکتورشوقي ضیف نظریه :

دوکتورشوقي ضیف د " فصول فی الشعرونقده" کتاب چې دمصردارالمعارف پـه مطبعـه کـې پـه ۱۹۷۱ م کـال کـې چـاپ شـوی دی . د دې کتاب پـه (۳۵-۳۶) مخونوکې دابوالفرج اصفهانی دالاغانی مؤلف په حواله کې ليکي :

" ولید دعبدالملـک زوی داول ځل دپـاره مجتـث وزن منـځ تـه راوړ. نومـوړی پخپله شعر وایه اوشعرویل ورته ډیراسـان کـارو . کـولای یـې شـول چـې لـه خپلـې غوښتنې سره سم شعروواییي اوداځینو دلیلونو له مخې چې ابوالفرج دهغه دژونـد پـه باره کې روایت کړی دی، داسې څرګندیږي چې ولید ددوهمې هجـري پیـړۍ پـه لومړنیو لسوکلونوکې دخپل خلافت په زمانه کې دجمعې په ورځ خلکوته په خـالص شعر یوه خطبه وویله چې اول یې دادی :

الحمدالله ولی الحمد - احمده فی یسرنا والجهد

وهوالذی فی الکرب استعین - وهوالذي لیس له قرین

دوکتورشوقي زیاتوي چې که دا روایت صحیح وي نـو ولیـد دعبدالملـک زوی لومړنی سړی دی چې دمزدوج شـعر قـالب یـې منـځ تـه راوړ چـې پـه هغـې کـې ددواړونیمو بیتونو په منځ کـې خاصـه اوځانګـړی قافیـه راځـي . دې شعرې قـالب دعباسیانو په تعلیمی شعرونوکې ډیرشهرت وموندااووده یې وکړ، لکه چې پـه اوسـنی پارسي کې یې وده وکړه اونوی نوم یعنی "مثنوي" یې ورباندې کیښود اوهغه لره پـه مسمط موشح . اودوري منظوماتو کې چې وروسته منـځ تـه راغلـل پراخـه تاثیروکړ اوداځکه چې دقافیو پـه مختلفـو ډولونـو او نیـم بیتوبـاندې دغوړونـو او اورید لـو اعتماد پیداکړ.(۱۳)

داوې د ‹‹‹ف او ب ډلې دپوهانو نظریې چې دمثنوي په باب یې څرګندې کـړې وې او ماکې مت دهغوي نظریې په پورته ډول راوړې.

که ددواړو د لو پوهانو نظریې سره پرتله کړو دالف ډلـې پوهـان د مثنـوي لـه پیدایښت نه په دري ادب کې د فاتح کـوي او د مثنوي پیدایـښت اساسـاً پـه دري ادب کې ګڼي ولې د خپلې ادعا د ثبوت له پاره داسې کومه بیلګه نه وړاندې کـوي

چې د هغې له مخې د مثنوي تاریخي لرغونتوب څرګند شـي او هـم پـه دري ادب کې د دریمې هجري پیړۍ تر اواخرو د مخـه د مثنـوي کومـه بیلـګه نـه لـرو. بلکـه لومړنۍ بیلګه یې د مسعودي مـروزي د شـاهنامې درې بیتونـه دي چـې د دریمـې هجري پیړۍ په اواخرو او د څلورمې پیړۍ په اوایلو کې د نظمولو نیټه اټکل کیږي.

دوهمه ډله پوهان مثنوي دعربوله ایجاداتوڅخه ګڼي اودېني امیـه پـه عصرکـې دهغې دبیلګونومونه اخلـي . دوکتورشـوقي ضیـف دابوالفرج اصفهانی دالاغـانی دمؤلف په حواله ولیدعبدالملک زوی لومړنی سړی ګڼي چې پـه مجتث بحـر کـې یې یوه خطبه په عربي ویلی اوبیا دې ډول نظمونـو دعباسیانوپـه تعلیمـی شـعرکې شـهرت پیداکـړی دی. ولیـد دغـه خطبـه ددوهمـې هجـري پیـړۍ پـه لومړنیـو لسوکلونوکې ویلې داسې معلومیږي چې مثنوي دعربـی خونـدي آثارولـه مخـې پـه عربي کې تر پارسي ادب دمخه ویل شوی دی که څه هم عربو مثنوي دمخه ویلـی دی ولې داهم یو واقعیت دی چې عربوتراوسه پـورې مثنـوي تـه انکشـاف نـه دی ورکړی اوهمدغه غیرعربي خراساني شاعران ووچې هم یې دفـورم لـه مخـې اوهـم دمحتوی له نظره مثنوي تـه انکشـاف ورکـړ اودتکـامل لوړومدارجوتـه یـې ورسـاوه اونړیوال شهرت یې پیداکړ داوزمانظرچـې پـه څو ورسـتیوکرښوکې مـې ددواړوډلـو پوهانودنظریو دپرتلې په نتیجه کې څرګندکړ.

## مآخذونه :

(۱) - دمولف لیکنه د متقارب بحر په برخه کې دمسدس الارکان په شکل تیک نـه ده، بلکه متقارب بحر مثمن وي . له رودکي څخه نیولی بیـا تـر جـامي پـورې ټولـو خپل مثنویات په متقارب مثمن محذوف یا مقصور بحر کې نظم کړي دی.

(۲) – روحی ، اصغر علی ، دبیر عجم ، لاهور ، ۱۹۲۸ . ۶۱-۶۲ مخونه.

(۳) – دزیات تفصیل او معلوماتو حاصلولو لپاره وګ

ادوارد براون . تاریخ ادبي ایران تهران چاپ سوم . ۱۳۵۱ . ۶۸۹-۶۹۰ مخونه.

(۴) – ( دعلي پاچا صالح په ترجمه تحشیه او تعلیق ) .

اداوارد براون ، تاریخ ادبیات ایـران . انتشارات مروارید . بهمن مـاه . ۱۳۴۱ کال. ۳۴-۳۵ مخونه.

(۵) – وګ دابن اسفندیار دطبرستان تاریخ مختلف موارد .

(۶) – وګ فردوس المرشدیه فی اسرار الصمدیه تهران له ۳۶۵ مخ نه وروسته .

(۷) - وګ تاريخ ادبيات درايران جلد اول چاپ سوم ص ص ۱۴۷-۱۵۱ المعجم شمس قيس چاپ دانشګاه تهران ۱۰۴، ۱۰۶ او ۱۷۲ مخونه

دپورتنيو دريو ګنو پايليکونو لپاره وګ

صفا ، داکتر ربيح الله ،ګنج سخن ، لومړی جلد ، تهران ، ۱۳۳۹ کال ،دمقدمې د ۲۳ مخ پايليک

(۸) - دزيات تفصيل لپاره وګ صفا ، داکترذبيح الله ، ګنج سخن ، جلد اول ، تهران دمقدمې ( ۳۳- ۳۵ ) مخونه .

(۹) - دزياتو معلوماتو لپاره وګ :

نعماني ، علامه شبلي ، شعر العجم ، جلد چهارم ، چاپ دوم ، تهران ، ۱۳۳٦ کال ، ۱۹۱-۱۹۲ مخونه ( دسيد محمد تقی فخر داعی ګيلاني ترجمه )

( ۱۰ ) - دزيات تفصيل لپاره وګ

موتمن زين العابدين ، تحول شعر فارسی ، تهران ، ۱۳۳۹ کال ، ۱۰٦ مخ

(۱۱) - دعربو په بحرونو اوزانو او زحافاتو کې دايرانيانو تصرف لپاره وګ : کتاب المعجم فی معايير اشعار العجم ) دمدرس رضوي په تصحيح ، تهران ، موسسهء خاور ، ۱۳۱۴ ش : دهرمان اته تاريخ ادبيات فارسي ، تهران ، ۱۳۵۱ کال. ۲۴ مخ پايليک په حواله.

(۱۲) - دپيزي د " ادبيات ايران " يادونه اته په خپل کتاب (تاريخ ادبيات) کې دمآخذونو درديف په ۱۳ مخ کې کړې ده .

۱۳) - ضيف ، دوکتور شوقي ، فصول فی الشعرونقده ، مصر ، ۱۹۷۱ م ، ۳۵- ۳٦ مخونه

# دمثنوي تعريف

مثنوي هغه مصرع بيت دی چې دواړه نيم بيتی يې پـه وزن او قافيـه کـې سـره برابره دوه دورونه ولري ،خوپه دې شرط چې دمربـوط نظـم دمخنـې او وروسـتني بيتونه به هروخت په وزن کې سره يواو په قافيه کې به سره بيل وي يعنـې دمثنـوي هربيت به مصرع وي اوهم به هربيت مستقله قافيه لري اوهربيـت بـه پـه وزن کـې سره يوشی وي.

په مثنوي کې دمعنی په لحاظ دبيتونو ترمنځ دمطلب تسلسل شرط دی . څرنـکه چې مثنوي پـه واحـدې قافيـه پـورې تـړلی نـه دی اوهـم د مثـنوي لپـاره بيتونـو دشميرحدود نه دي ټاکل شوي له دې کبله مثنوي داوږدواو مفصلو موضـوع ګانـو دپاره . لکه حماسي . عشقی . قصصي . عرفانی او اخلاقـی ډيـر مـوزون اومناسـب دي . په پښتو ادب دپټې خزانې مولف محمدهوتک دمثنوي لـه پـاره د " دوه يـځ " کلمه راوړې ده . مثنوي دنظم يو عام اونسبتا اسان دول دی داوږدونقلونو کيسـو او اخلاقياتو کتابونه زياتره په دغه ډول نظم کښل شوي دي (۱)

څرنګه چې دمثنوي پيدايښت په . ي ادب کې لـه پښتـو ادب دمخـه دی نـوزه غواړم چې لومړی دمثنوي پيدايښت او بحرونه په لنډ ډول په دري ادب کې وڅيړم اوله هغې نه وروسته پخپله اصلـي موضـوع يعنـې ( پـه پښتـو ا ب کـې دمثـنوي پـه پيدايښت تاريخی سيراوتکامل ) پر څيړنه پيل وکړم

اوس دحميدماشوخيل دنيرنګ عشق څوبيتونه دبيلګې په توګه راوړم

دغـــــايب شـــــاهد پـــــه حســـــن لايـــــزال رو
دربښتينـــــــې محبـــــت بـــــه بنه انـــــزال رو

دعاشــــــق دخســــته کي پــــه تمنـــاړو
دخوبـــــانو دخـــــودي پــــه اســـتغنا ړو
پــــه نـــارو پـــه فریـــادونو دبلبـــل ړو
پــــه وړه وړه خنـــــدا دتبـــــازه ګل ړو
خان ســـوزي پـــه بـــې رحمیـــه ددیـــوې ړو
دپتنـــــک دخان پـــه ســـولوپـــه نبیرې ړو
دهجـــران دنیـــم بســـمل پـــه اضطـــراب ړو
دوصــــال دستظـــر پـــه پیـــچ وتـــاب ړو
دبـــــهاردنازه کلـــــو پـــــه معـــراج ړو
دخـــزان دناترســـیه پـــه تـــاراج ړو
دیتیــــم دګرمــــواوښوپــــه ګداز ړو
دبـــې کســو بـــې چـــاره پـــه سوزوســـاز ړو
پـــه ســامان دتوروســـترګوپـــه ســیاه ړو
پـــه تحتنــه قلولــو دبـــې ګنـــاه ړو
دغمجنـــوزړوپـــه ام آتـــش بـــارړو
دبـــې غمودخـــوښی پـــه اعتبـــارړو
پـــه دیرســـهم داول خلـــې قربـــت ړو
دبوســـي دالتمـــاس پـــه دیرهیبـــت ړو

## په دری ادب کې دمثنوي پیدایښت اوبحرونه

الف : په هزج مسدس محذوف یا مقصور بحر کې دمثنوي ویل :

.. ویل کیږي په دري ادب کې ترټولـو لومړنـی مثنوي ویونکـی شاعر مسعودي مروزي دی. ده ددریمي هجري پیړۍ په اواخرو او دڅلورمې هجري په اوایلوکـې ژوند کاوه. دی لومړنی شاعر دی چې تاریخي روایتونه یې تنظیم کړل اودمنظومـې حماسې په شکل یې دشاهنامې په نامه منځ ته راوړل

دده دشاهنامې په برخه کې ډیرمعلومات نشته . "البدءُ والتاریخ " چـې مطهربن طاهر المقدسی د ( ۳۵۵هـ) تالیف کړی دوه ځایه یـې ددې منظومـې یادونـه کـړې ده یویې د کیومرث دپادشاهي په برخه کې په دې عبـارت :" وقدقـال المسعودي في قصیده المحیره بالفارسیه ."

نخســتین کیومـــرث امـــد بـــه شـــاهی
بـــه ګیتـــی درګرفتـــش پیـــش ګاهـــی

چوســـــی ســــــال بکیتـــــــی پادشـــــاه بـــــود
کـــــه فرمـــــانش بـــــه هرجـــــایی روابـــــود

" وانماذکرت هذالابیات لانی رایت الفرس یعظمون هذالابیات والقصیدة وبصورونها و برونها کتاریخ لهم "(۲)

بل خای دسامانی پادشاهانو ددورې دختمیدو په برخه کې وایي " وانقضی امرملوک الفرس واظهرالله دنیه واتجزوعده ... وبقول المسعودي في آخرقصیدته بالفارسیه ":

سپری شد زمـــان خسروانا
کـه کام خویش راندنـد درجـهانا "(۳)

ددې شاهنامې یوازې پورتني درې بیتونه په لاس راغلی دي. دمطهربن طاهر په قول دغه فارسي منظومه دیره ښکلې اوخراسانیانوته محترمه وه اوهغه یې دخپل ملی تاریخ په حیث ګڼله ددې منظومې دویلو تاریخ دڅلورمې هجري پیړۍ له پیل نه وروسته نه وراوړي ځکه چې دهغې نوم او اقتباس په ( البدء والتاریخ ) کې چې دڅلورمې هجري پیړۍ په نیمایي کې تالیف شوی راغلی دی. کیدای شي چې دغه شاهنامه په (۳۰۰ق) یا له دې سنې دمخه یا وروسته ویل شوې وي.

دمسعودي شاهنامې دپنځمې هجري پیړۍ په اوایلو کې شهرت درلود. (۴)

مسعودي خپله شاهنامه په هزج مسدس محذوف یا مقصور بحر ( مفاعی لن مفاعی لن مفعولن یا فعولان ) کې ویلې ده. دپورتنیو دروبیتونو څخه یو بیت درکنونو دعروضي تقطیع سرد سم دبیلګې په توګه راوړم.

| | | |
|---|---|---|
| مـــفـــاعی لن | مـــفـــاعی لن | فـــعـــولن |
| نخـــستـــین گیـــو | مـــــرث آمـــد | بشـــــاهی |
| بـگیـــــتی در | گـــرفـــتش پیـــ | ــش گـــاهی |

دمسعودي مروزي دشاهنامې په وزن یعنې په هـزج مسدس مخذوف یامقصور بحرکې فخرګرګانی د ( ویس ورامین ) ترعنوان لاندې یوه منظومه دمثنوي پـه دول نظم کړې چې دنظمولـو نیټه یې دپنځمې هجـري پیـړۍ پـه اوایلو کـې اټکل کیږي. (۵)

ددې منظومې څوبیتونه بیلګې په توګه راوړم:

یکــــــــی دخترکــــــــه چـــــــون آمدزمـــــــادر
شـــب تـــــاریک را بـــــزدود چـــــون خـــور
کـــــه اومـــــه راســــخن هـــــا بـــــود یکســـــان
کـــــه یـــــارب صورتـــــی باشـــــد بدیـــــن ســـان
همـــــــه در روی اوخـــــــــیره بمـــــــــاندند
بـــــه نـــــام اوراخجســـــته ویـــــس خواندنـــــد
چوقـــــامت برکشـــــیدان ســـــروآزاد
کـــــه بـــــودش تـــــن زســـــیم ودل زپـــــولاد

همدارنګه دمسعودي دشاهنامې په وزن ګنجوي په خپله خمسه کې يـو عشقي داستان د (خسرو وشيرين) ترعنوان لاندې دمثنوي په بڼه نظـم کړی دی. نظامي ددغه داستان نظمول په ۵۷۳ ه کې پيل اوپه ۵۷٦ هجـری کې پـای تـه ورساوه. دادی دنوموړي منظوم داستان څوبيتونه دبېلګې په توګه وړاندې کوم:

خداوندا درتوفيق بکشای　　نظامی راراه تحقيق بنمای
دلی ده ګويقينت رابشايد　　زبانی کافرينت را سرايد
مده ناخوب رابرخاطرم راه　　بدار ازناپسندم دست کوتاه
درونم رابنورخودبرافروز　　زبانم راثنای خود درآموز

لکه چې دمخه مې هم ورتـه اشاره کړې ده. پورتـني بيتونـه هـم دمسعودي دشاهنامې په وزن په هزج مسدس محذوف يا مقصور بحرکې ويل شوي دي. څرنګه چې دمسعودي په شاهنامه کې د رکنونو دتقطع عروضي بڼه ښودل شوې ده. دلتـه يوازې دپورتنيو بيتونو په ليکلو بسوالی کوم.
په همدې ترتيب داميرخسرو، خسرو وشيرين (د ٦۹۸ ه ق) تـاليف اودجـامی يوسف وزليخا (۸۸۸ ه ق تاليف) مثنويات په ذکرشـوي هـزج مسـدس محـذوف يـا مقصور بحر کې نظم شوي دي حذف يا قصرېې په عروض اوضرب کې واقع کيـږي عروض وزنونه يې په لاندې ډول دي:

مـــحـــذوف : مـــفـــاعی‌لن | مـــفـــاعی‌لن | فـــعـــولن ||
مـــقـــصـــور : مـــفـــاعی‌لن | مـــفـــاعی‌لن | فـــعـــولان ||

## ب : دمثنوي ویل په متقارب مثمن محذوف یامقصوربحر کې :

دسامانیانوپه دوره کې دځلورمې هجري پیړۍ په پیل کې رودکي دلومړی ځل دپاره په پورتني بحر کې دمثنوي په توګه نظم ویلی دی . رودکی دسامانیانو په دربارکې دامیر سعیدنصربن احمد بن اسمعیل اوامیرشهید ابوجعفر احمد بن حلف بن لیث چې په ( بانویه ) مشهور واودماکان مداح و . درودکي هغه بیتونه چې په متقارب مثمن محذوف یا مقصور بحر کې ویلي دي . د ( اثار منظوم رودکی با ترجمهٔ روسی ) ترعنوان لاندې کتاب څخه مې انتخاب کړي دي چې دبریګنسکی په مقدمه اونظارت په ( ۱۹۶۴ م ) په مسکوکې چاپ شوی دی . دهربیت په برخه کې به دنوموړی کتاب صفحه هم معرفی کړم . ددې بحرعروضي وزنونه دادي :

محذوف : فعولن | فعولن | فعولن | فعل ||
مقصور : فعولن | فعولن | فعولن | فعول ||

دادی له یادشوي کتاب څخه په استفاده دهغوبیتونودرکنونو عروضي تقطیع کوم چې په پورتنی بحرکې ویل شوي دي :

فعولن | [illegible] | فعولن | فعول ||
درخش آر | نخندد | بوقتی | بهار ||

۲۵٤ مخ

همانا | نگرید | چنین آبـ | ـر زار ||
چه خوش گـ | ـفت آن مر | دبا آن | خذیش (۶) ||
مکن بد | بکس گر | نخواهی | بخوش ||

۲۵۶ مخ

نعل

اگر با | شگرفه | بود پـ | ـیرهن ||
بودحا | جـت بر | کشیدن | زتن ||

۲۵۸ مخ

نعول

بچشی | دلت دیـ | ـدباید | جهان ||
که چشمی | سری تو | نبیند | نهان ||

۳۸۹ مخ

نعول

بدین آ | شکارت | ببین آ | شکار ||
نهـ [illegible] | ـت را بر | نهانی | گمار ||

۳۸۹ مخ

په نومړي بحر کې بوشکوربلخي د ( آفرین نامه ) ترعنوان لاندې ابومنصورمحمد بن احمد دقیقي دڅلورمې هجري پیړی په اواسطو ( ۳٦۸ هـ - ق = ۹۷۸م ) کې دشاهنامې نظموونکي دی چې وروسته دزروبیتونو له ویلو څخه په ځوانی کې دخپل مریی له لاسه مړشو.

له دقیقي څخه وروسته ابوالقاسم منصوربن حسن فردوسي طوسی (۳۲۹ تر ۴۱۱ هـ = ۹۴۰تر ۱۰۲۰ م ) یوڅ دخراسان له نامتو اومشهور وحماسه ویونکو شاعرانو څخه دی چې نړیوال شهرت لري.

فردوسي خپله شاهنامه ددقیقي دزروبیتونو له راوړلو څخه وروسته په هماغه متقارب مثمن محذوف یا مقصور بحرکې په ( ۳۷۰هـ ق کې پیل کړې اوپه(۳۸۴ هـ ق پای ته رسولې ده . (۷)

فردوسي ځینی داستانونه ، رستم اواسکندر په (۴۰۰ هـ ق ) یا (۴۰۱هـ ق) کې پرشاهنامه ورزیات کړه په همدې ترتیب استاد ابوالقاسم حسن بن احمد عنصري بلخي ( ۴۳۱ هـ ق مړ ) د " وامق وعذرا" مثنوي ، نظامی گنجوي سکندرنامه ( د ۵۹۷ هـ-ق تالیف ) دسعدي بوستان په لسو بابونوکې په ٦۵۵ هـ ق ، دمولانا جلال الدین بلخي عرفانی مثنوي په ۲٦ زروبیتونو کې دامیرخسرو ائینه سکندری ( د ٦۵۹ هـ ق تالیف ) اودجامی خردنامه په ذکر شوی متقارب مثمن بحرکې ویل شوي عروض اوضروب یې محذوف یا مقصوروي .

ج : په رمل مسدس محذوف یا مقصور بحر کې دمثنوي ویل

په دري ادب کې ترټولو لومړنی شاعر رودکی دی چې کلیله اودمنه یې په څلورمه هجری پیړی کې په رمل مسدس محذوف یا مقصور بحر کې له فارسي نثر څخه په فارسي نظم منظوم کړې ده . (۸)

درودکی دکلیلی اودمنې بیتونه اوس تیت اوپرک دي . یوازې څلوربیتونه یې په تحفهٔ الملوک کې نقل شوي دي . ددې بحرعروضي وزنونه په لاندې ډول دي :

محذف : فاعلاتن فاعلاتن فاعلن

مقصور : فاعلاتن فاعلاتن فاعلات

دتحفهٔ الملوک دڅلوروبیتونو درکنونو عروضی تقطیع په لاندې ډول ده :

| | | |
|---|---|---|
| فاعلاتن | فاعلاتن | فاعلن |
| تاجهان بو | د وسری آ | دم فراز |

| | | |
|---|---|---|
| کس نه بود ز | راز دانش | بی نیاز |
| مردمان | بخرد ندر | هرزمان |
| راز دانش | را بهرگو | نه‌زیان |
| کرد کردنـــــد | وگرامی | داشتند |
| تابسنگ‌انـــــ | ـــدر همی بنـــــ | ـــگاشتند |
| دانش‌اندر | دل چراغی | ـست |
| وزهمه‌بد | برتنی تو | ـست |

همدارنگه شیخ عطار په شپږمه هجري پیړۍ کې په رمل مسدس محذوف یا مقصور بحر کې دمنطق الطیر په نامه یوه تصوفي مثنوي نظم کړې او موضوع یې دمرغانو سره دیوه داستانی الوتونکی ( پرنده ) خبرې دي . له طیورو څخه غرض دسالکانو په لاره کې دحق لاراو له سیمرغ څخه غرض دحق تعالی وجود دی . دغه نوم ددې مثنوي له پاره له قرآن څخه عطار ټاکلی چې معنایې دمرغانوژبه ده چې دنمل دسورې په (١٦) آیه کې راغلې ده (٩)

دمنطق الطیر مثنوي یوازې څوبیتونه دبیلګې په توګه راوړم اودعروضي اوزانوله تقطیع څخه یې صرف نظرکوم ځکه چې دهمدې ذکر شوي بحر اوزان اوعروضي تقطیع دمخه بېودل شوې ده . بیا تکرار یې لازم نه بولم دمنطق الطیر بیتونه دادي .

آفرین جان آفرین پاک را آنکه جان بخشید وایمان خاک را
عرش را برآب بنیاد اونهاد خاکیان راعمر برباد اونهاد
آسمان را در زبردستی بداشت خاک را در غایت پستی بداشت
آن یکی را جنبش مادام داد وین دګررا دایماً آرام داد
آسمان راخیمهٔ برپای کرد بی ستون کردوزمینش جای کرد

همدارنګه جامي په نهمه هجري پیړۍ کې په هفت اورنګ کې د " سلامان وابسال " ترعنوان لاندې منظومه په پورتنې رمل مسدس محذوف یا مقصوربحر کې دمثنوي په بڼه ویلې ده، څوبیتونه یې دبیلګې په توګه راوړم .

ای بیـــادت تـــازه جـــان عاشـــقان
زآب لطفـــت ترزبـــان عاشـــقان
ازتوبرعـــالم فتـــاده ســـایه ای
خوبرویـــان راشـــده ســـرمایه ای

عاشـــــقان افتــــــادهء آن ســــــايه انـــــد
مــــــانده درســــــودا ازان ســــــرمايه انـــــد
تـــــــازليلی سرحســـــنش ســـــــرنزد
عشـــــق اواتـــــش بمجنـــــون درنـــــزد
تـــــالب شـــــيرين نكـــــردی چـــــون شـــــكر
ان دوعاشـــــق رانشـــــد پرخـــــون جـــــگر

## د : په خفيف مسدس مخبون محذوف يامقصور يـا اصلـم يـا اصلـم مسبغ بحر کې دمثنوي نظمونه .

په پورتني بحر کې ه دلومړی ځل لپاره رودکی په فارسی ادب کې مثنوي نظـم کړې ده .

| | | | |
|---|---|---|---|
| محذوف : | فاعلاتن | مفاعلن | فعلن |
| مقصور : | فاعلاتن | مفاعلن | فعلان |
| اصلم : | فاعلاتن | مفاعلن | فع‌لن |
| اصلم مسبغ : | فاعلاتن | مفاعلن | فع‌لان |

ددې بحر صدر او ابتدايی سالم حشوه يې مخبونــه عـروض ضرب يـې مخبـون محذوف يا مخبون مقصور يا اصلم ( اشعث حذوف ) يا اصلم مسبغ ( اشعف مقصـور ) راځي (١٠)

درودکي هغه بيتونه چې د " آثـار منظـوم رودکـي باترجمـه روسـي " ترعنـوان لاندې په ١٩٦٤ م دبريګنسکی په مقدمه اونظارت په مسـکو کـې چـاپ شـوي دي . ځينې بيتونه يې په پورتنی بحر کې ويل شوي دي له هغو څخــه يــې ځينــې بيتونـه تاکلی چې درکنونو له عروضی تقطيع سرد سم يې په لاندې ډول راوړم :

| | | |
|---|---|---|
| فاعلاتن | مفاعلن | فعلن |
| ريش و سبلت | همی خضا | ب کنی |
| خويشتن را | همی عذا | ب کنی |

پورتنی بيت په خفيف مسدس مخبون محذوف بحر کې ويل شوی او دپورتنـی اثر په ٢٠۵ مخ کې راغلی دی .

فــا عــلاتن | مــفــا عــلن | فــعــلان ||
زرع و ذرع از | بهــارشــد | چــو بهــشت ||
زرع کــشت نــست ذرع گــو | شــه ء کــشت ||

پورتنی بیت دنوموړی کتاب په ۳٦٦ مخ کې راغلی او په خفیف مسدس مخبون مقصور بحر کې ویل شوی دی :

فــا عــلاتن | مــفــا عــلن | فــع لن ||
هــر کــرا را | هــبــرزغــن | بــاشــد ||
گــذرا و (۱۱) | بــرغــزن | بــاشــد ||

پورتنی بیت په خفیف مسدس مخبون اصلم بحر کې ویل شوی او دذکر شوي کتاب په ۲٦٦ مخ کې راغلی دی :

فــا عــلاتن | مــفــا علن | فــع لان ||
بــودنی بــو | دمی بــیــا | رکــنون ||
رطل پــرکــن | مگوی بــیش مــخون || (۱۲)

پورتنی بیت هم دذکر شوي کتاب په (۲٦٦) مخ کې راغلی او په خفیف مسدس مخبون اصلم مسبغ بحر کې ویل شوی دی .

دحکیم ابوالمجد مجدود بن آدم سنایي ، دحد یقة الحقیقه اوطریق التحقیق مثنویات ، دنظامی گنجوي هفت پیکر ( د ۵۹۳ هـ ق تالیف ) دامیرخسرو دهلوي هشت بهشت ( د ۷۰۱ ه ق تالیف ) او دجامی سلسلة الذهب ( د ۸۷۹ هـ ق تالیف ) په خفیف مسدس مخبون محذوف یا مقصور یا اصلم یا اصلم مسبغ بحر کې ویل شوي دي .

ه – په رمل مسدس حذوف مجنون کې دمثنوي ویل :

جامی د ( سبحة الابرار ) مثنوي چې دهفت اورنگ خلورم اورنگ دی په پورتنی بحر کې منظوم کړی دی .

دځینو قراینو له مخې څرگندیږي چې جامي به نوموړی مثنوي په (۸۸۷ هـ ) کې نظم کړی وي . د " سبحة الابرابر " مثنوي موضوع اخلاقی مطالب اوداسلام دمقدس دین عالی مقاصددي . دغه نوموړې مثنوي ( ۴۰ ) عقدې لري .*

دادی دجامي دسبحة الابرابر خوبيتونه درکنونو دعروض لــه تقطيع سره سم دفاصل استاد پوهاند په لارښوونه راوړم:

| | | |
|---|---|---|
| فاعـــــلاتن | فعـــــلاتن | فـــع لن |
| ترزبان خـــا | مه مـــــشكف | شارا = شارا |
| تامـــعطر | كندين عُـــ | ـــوا را |
| نـــافـــه ای آ | ه ی تـــــاتا | رستين |
| نفحه ای طـــ | ـــله ء عطا | رستين |
| خوش نفس غـــ | ـــنچه ء باغی | قدم است |
| تازه رس مـــی | وه شاخـــــی | كرم است |
| برخ عـــ | ـــقل درغـــ | ـــيب گشاد |
| لوح بـــرنا | مه ای لاريـــ | ـــب گشاد |
| نقش هرلـــو | ح ايـــــن حر | ف وفاست |
| طالبـــان را | دری فـــــردو | س نماست |

په همدې ترتيب واصفی چې د بدیع الوقایع په نوم یې یوکتاب په دووجلدوکې ليکلی دی . دغه کتاب منثور دی وې خای په خای غزلې اومثنوي هم لري . واصفی په رمل مسدس محذوف مخبون بحر کې دمثنوي په بــنه منظومه لري .

د " نمونه ادبيات تاجک " دکتاب په استناد واصفی اصلا هراتــی دی پــه هرات کې روزل شوی دی .

نوموړی دصفوي شاه اسمعيل معاصرو. دشيعه اولنی فتنه کـې ماوراءالنهر تـه ولاړ اوتر ۹۴۰ هـ ق پورې واقعات يې په خپل کتاب کې ليکلي دي . داسې معلومیږي چې نوموړی دلسمې هجري پیړۍ په دوهمه نيمايي کې مړ شوی اوپه تاشکند کې خاوروته سپارل شوی دی .(۱۳)

دادی دنوموړي شاعر اولیکوال خوبيتونه چې په پورتنی بحر کې یې منظوم کړی دی، دبیلګې په توګه دلومړی توک (۱۴) څخه راوړم :

هســت درسلسلهٔ خاقــانی مــهر داري کــه نــدارد ثــانی

چــون کلامــش بــه ظرافــت اميخــت ازدهــانش ګهربـی حـد ريخــت

فخرافــاق بــود زوشــده فــاش مــردی وکــرم وحســن معــاش

بـــامن دلشــــده زاردژم    خــــوب شـــــدعاقبت ازروی کـــــرم
چـون کنـد اهـل ســخاوت زربخــش    هســت بیـش ازهمــه اخــر دربخـش
هســـت اوخـیره دگر در راه ایـــن    کـــه نـــه بینـــي گره اورا جبـــین
ازســرلطف معــین فقــر اســت    کــه کشــاده رخــش ازعــین عطاســت
فطـــرت اوچوبلنـــد افتـــاده    خلـــق را جملـــه پســند افتـــاده

## و : سریع مطوی مکسوف یا موقوف بحر .

دنظامی گنجوی مخزن الاسرار ( د ۵۷۲ هـ ق تالیف ) دامیر خسرو مطلع الانـوار (د ٦٩٨ هـ ق تـالیف ) او دجـامي تحفـهٔ الاحـرار ( د ۸۸٦ هـ ق تـالیف ) درې سـره مثنویات په سریع مطوي مکسوف (۱۵) یا موقوف بحر کې ویل شوي دي .(١٦) طـي يې په ټولو رکنونو کې اوکف ( کشف) یا وقف يې يـوازې پـه عـروض اوضـرب کـې پیښیږي. عروضي وزنونه يې دادي :

مکســـــوف : مفتعلــــــــن | مفتعلـــــــــن | فــــــاعلن
موقــــــوف : مفتعلــــــــن | مفتعلـــــــــن | فــــــاعلان

په پورتنیو مثنویاتو کې لومړی ځل نظامي گنجوي د " مخزن الاسرار " ترعنـوان لاندې مثنوي نظم کړې او امیر خسرو دنظامی په تقلید اوپیروي د ( مطلـع الانـوار ) په نامه اوله امیر خسرو څخه وروسته جامي د ( تحفهٔ الاسرار ) په نامـه مثنـوي نظـم کړی دی . څرنگه چې له پورتنی لیکنې څخه هم جوتـه ده پـه نومـوړی بحـر کـې دنظامي گنجوي محزن الاسرار تاریخی قدامـت لـري لـه دې کبلـه زه دبیلـگې پـه توگه دنظامی دمحزن الاسرار څوبیتونه درکنونـو لـه عروضـی تقطـع سـره راوړم او دامیر خسرو او جامی دمثنویاتو یوازې یادونه کافي بولم ځکه په عـین بحـر کـې بـه تکراري تقطیع گټوره نه وي .

| | | |
|---|---|---|
| مـــفـــتـــعلن | مـــفـــتـــعلن | فـــاعلن |
| بســــــم الا | ه رحــــمـــــا | ن رحــیــم |
| هـســت کـلـیــــــد | درگـنـــــــــ | ـج حـکـیـم |
| فـــاتحــــــــــهء | فکـرت وخـــــــ | ـتم ســخـن |
| نـــــام خـــدا | یست بـــــــرو | خـــتم کن |

پيـــش وجـــو | دي هـــمـــه آ | ينده گـــان ||
پيـــــش بقـــا | بي همـــه پـــا | ينده گـــان ||

## ز : هزج مسدس اخرب مقبوض محذوف يا مقصور بحر

دنظامی ، امير خسرو بلخی ثم الدهلوي اودجامی " مجنون وليلی "مثنويات په هزج مسدس اخرب مقبوض محذوف يا مقصور بحر کې ويل شوي دي . ددغه وزن صدر اوابتداء اخرب . حشوه مقبوض او عروض او ضرب محذوف يا مقصوروي عروضـي وزنونـــه يې دادي :

| | | |
|---|---|---|
| مقصـــــور : مفعـــــول | مفـــــاعلن | فعـــــولان |
| محـــــذوف : مفعـــــول | مفـــــاعلن | فعولـــــن |

په پورتنی بحر کې دلومړی ځل لپاره نظامي ګنجوي په خپله خمسه کې د "مجنون وليلی " ترعنوان لانـدې ( د ۵۸۴ هـ ق تـاليف ) مثنوي نظـم کـړی دی . دنظامی په پيروي امير خسرو هم په ۶۹۸ ه ق کې " مجنـون اوليلـی " اوهمدارنګه جامی هم په هفت اورنګ کې په ۸۸۹ ه ق کال د " مجنون اوليلی " مثنوي په ذکر شوي بحر کې منظوم کړی دی زه يوازې دنظامی د " مجنون اوليلی " مثنوي دځو بيتونو درکنونو عروضی تقطيع کوم او دامير خسرو او جامي دمثنوياتو په يادونه بسوالی کوم . دنظامی دمجنون او ليلی مثنوي په دې بيتونو پيل کيږي :

مـــفـــعـــول | مـــفـــاعلن | فـــعـــولان ||
ای نـــــام | توبهـــتـــری | ســـرآغـــاز ||
بـــی نـــــام | تونامـــه کی | کنـــم بـاز ||
ای يـــــاد | تومـــونسی | روانم فـــعـــولن ||
جـــزنـــام | تونبـــست بـــر | زبـــانـــم ||

## ح : متقارب مثمن سالم بحر :

امير خسرو په نه سپهر کې نه وزنونه دمثنوي دپارد راوړي دي چـې دوه وزنونـه يې په ده پورې مختص دي اوده دمخه ياوروسته يې استعمال نادر دی يو دغـه دوو وزنونو څخه پورتنی بحر دی دادی يو بيت يـې دبيلګې پـه تـوګه درکنونـو دعروضـي تقطيع سره سم راوړم :

| | | | |
|---|---|---|---|
| فـعـولن | فـعـولن | فـعـولن | فـعـولن |
| چـو بـنـشـ | ـسـت بـر تـ | ـخـت قـطـبـی | زمـانـه |
| کـه چـون | قـطـب بادش | بقـاجـا | ودانـه |

پورتنی بحر دنه سپهر په سپهردوم پورې اړه لري .

## ط : رجز مسدس مطوي بحر :

دغه بحر هم په امیر خسرو پورې مختص دی . عروضي وزن او تقطیع یې په لاندې ډول ده :

| | | |
|---|---|---|
| مـفـتـعـلن | مـفـتـعـلن | مـفـتـعـلن |
| کـشـور هندسـ | ـت بهشـ | ـتی بزمـین |
| حـجـتش اینـ | ـک برخی | صـفـحـه بین |

دامیر خسرو پورتنی بحر دنه سپهر په سپهر سوم پورې اړه لري مادځېل کار داساني په غرض دهغو بحرونو یوازې په یوه یوه بیت باندې اکتفاء وکړه .

داوو په پورته ډول په دري ادب کې دمثنوي پیدایښت تاریخي سیر اوتکامل چې په لنډ ډول ولیکل شو . دومره زیاتوم چې په دري ادب کې تراوسه پورې مثنوي په نهو بحرونوکې نظم شوي چې دنهو بحرونو له جملې دامیرخسرو دوه بحره (سپهر دوم – سپهر سوم ) چې ده پورې مختص دي استعمال یې اوس متروک شوی دی اودپاتې اوو بحرونو استعمال تراوسه په دري ادب کې مروج دی .

## ماخذونه:

(۱) - په دې برخه کې دپوهاند رشاد له درسي نوټونو څخه کار اخیستل شوی دی .

(۲) - البدءوالتاریخ چاپ Huart ج ۳ ص ۱۳۸ او ۱۷۳ د : صفا،دوکتور ذبیح الله ، تاریخ ادبیات درایران ، جلداول تهران ، ۱۳۳۸ کال د ۳۷۰ مخ پایلیک په حواله .

(۳) - زیات تفصیل لپاره وګ: صفا، دوکتور ذبیح الله ، ګنج سخن ، جلداول ، تهران ،دوهم چاپ ، اسفند ۱۳۳۹ کال ، ۱۵۰-۱۵۱ مخونه .

(۴) - دمسعودي دشاهنامې نوم دپنځمې هجري پیړۍ په پیل کې په غرر اخبار ملوک الفرس ثعالبی کې ( چې مخکې د ۴۱۲ هجري څخه تالیف شوی دی ) ګورو ، ثعالبی دطهمورث دپادشاهي په شرح او تفصیل کې وایي : وزعم المسعودي فی مزد وجه بالفارسیه ان طهمورث بنی قهند

زمرو." همدارنګه شعالبي دبهمن داسفنديار دزوی دسلطنت په شرح او دهغه لښکر کښې سيستان ته اوله زال سره دجنګ په برخه کې وايي : " فعفا عنه ( ای عن زال ) وامر برده الی منزله والافراج له عن مسکه من ماله وذکر المسعودي المسروزي فی مزدوجته الفارسيه انه قتله ولم يبق علی احد من ذوبه ." دزيات تفصيل او معلوماتو لپاره وګورئ : صفا ، دوکتور ذبيح الله ،تاريخ ادبيات درايران، جلد اول ، تهران ، ۱۳۳۸ کال ۳۷۰-۳۷۱ مخونه.

(۵) - زيات تفصيل لپاره وګ: صفا،دوکتورذبيح الله ، ګنج سخن، جلداول، تهران ، دوهم چاپ، اسفند ۱۳۴۹ کال ، ۱۵۰-۱۵۱ مخونه .

(٦) ددغه بيت لومړنی نيم بيتي دشعر العجم په څلورم ټوک ، ۱۹۲ مخ کې درودکي په نامه په لږ تغيير داسې راغلی دی: نکو ګفت مزدوربا‌آن خذيش
مکن بدبه کس ګرنخواهی بخويش .

(۷) - دزياتو معلوماتولپاره وګ:صفا ، دوکتور ذبيح الله ، ګنج سخن ، جلد اول ،تهران دوهم چاپ ، اسفنديار ، ۱۳۳۹ کال ، ٦۸-۹۸ مخونه .

(۸) - کليله او دمنه له پهلوي څخه په عربي ژبې باندې دامير سعيد نصربن احمد په فرمان ابوالفضل بلعمی په فارسي ترجمه کړې او دنوموړي امير په امر رودکي په فارسي نظم دمثنوي په بڼه اړولې ده . دزياتو معلوماتو دپاره وګ: صفا ، دوکتور ذبيح الله ، تاريخ ادبيات درايران ، جلد اول ، تهران ، ۱۳۳۸ کال ۳۷۱-۳۸۹ مخونه .

(۹) - دتفصيل لپاره وګوری : صفا ، دوکتور ذبيح الله ، تاريخ ادبيات درايران ، جلد دوم ، چاپ سوم ، تهران ۱۳۳۹ کال ، ۸٦۳ مخ .

(۱۰) - له فاعلاتن رکن څخه چي دحذف او قطعي په اغيزه سره ( فع لن) جوړشي . دغه فرعه دالمعجم فی معايير اشعار العجم په ۳۸ مخ کې اصل فرعه بلل شوې ده . مګر په معيار الاشعار معراج العروض الاقناع په ۱۲ مخ محيط الدايره ۳۵ مخ وشارح شرح عروض المنقاح؛ ميزان الشعراء (جدول۳) کې د( ابترې ) نوم پرې ايښودل شوی دی . او په الاقناع کې داهم زياته شوې چې ځينې کسان دغه فرعه مقطوعه بولي . په ميزان الاوزان ۱۲ مخ او حدايق البلاغت ۹٦ مخ کې دغه فرعه هم مقطوعه بلل شوې ده او دشجره العروض مولف په دغه باب دحدايق البلاغت وينا رده کړې ده (وګورئ : دشجرة العروض ۲۵ مخ ) او ويلی يې دي چ درکن دوروستني مجموع وتده څخه ديوه متحرک غوځولو ته و

وګ رشاد ، پوهاند عبدالشکور ، " دمیر علي شیر میزان الاوزان او دهغه په باب دمولف او بابر ترمنځ محاکمه ." کابل مجلـه ، ۱۳٦۰ هـ ش کـال ، دریمـه ګڼه ، پنځم مخ پایلیک .

۱۱- ابتداء ... نه ده .

۱۲- جامي نورالدین عبدالرحمن ، مثنوي هفـت اورنـګ . تـهران ، ۱۳۵۱ کـال دوهم چاپ دمصحح دمقدمې ۲۳-۲۴ مخونه ، ( دمرتضی – مـدرس ګیلانـی پـه تصحیح او مقدمه )

۱۳- دواصفي دپیژندنې لپاره وګ :
پښتو آریانا دایرة المعارف ، دریم جلد ، کابل ، ۱۳۳۷ کال ، ۲۷۷ مخ

۱۴- وګ : واصفي ، زین الدیـن محمـود ، بدایـع الوقـایع ، جلـد اول ، مسـکو ، ۱۹٦۱ کـال ٦۲-٦۳ مخونـه ( دالکسـتاندر بـالدیرف انتقـادي متـن ، مقدمــه او فهرستونه . )

۱۵- په ځینو عروضي کتابونو کې دکســف پرځای کشـف او دمکسـوف پـرځای مکشوف لیکلی دی . وګ
المعجم فی معاییر اشعار العجم، شجرة العروض او میزان الاوزان .

۱۶ دشجرة العروض په ۵۳ مخ کې لیکلې دي : په دغه وزن کې کله عـروض او ضرب اصلم یااصلم مسبغ هم راځي .

وګ رشـاد ، پوهـاند عبدالشـکور ، "دمـیرعلي شـیرمیزان الاوزان او دهغـه پـه بـاب دمولف اوبابر ترمنځ محاکمه " کابل مجله ، پنځمه ګڼه ، ۱۳٦۰ هــ ش کـال ، ۴ مـخ پایلیک شپږمه او اوومه ګومره .

# په پښتو ادب کې دمثنوي پيدايښت او بحرونه

ترکومه ځايه پورې چې مادمثنوي په باب پـه پښتـوادب کـې څيړنـه کـړې دد . دموجودو موادو له مخې چې زموږ پښتو کتابونو کې خوندي او زمـوږ پـه لاس کـې شته په پښتو ادب کې دمثنوي دپيدايښت لومړنۍ بيلګې سره دپنځمې هجري پيـړۍ په اوايلو کې مخامخ کيږو او هغه هم دشيخ اسماعيل نيکه هغه منظومـې نـارې دي چې دخر ښبونْ تګ په وخت کې يې ويلې دي . کـه چـيرې دپښتـو ادبيـاتُولرغونی دورې اثار دعلمي تحقيقاتو په رڼا کې رابرسـيره شـي ،کيـدای شـي چـې دمثنـوي دپيدايښت نيټه په پښتو ادب کې ترپورتني نيټې څخه دمخه ولاړه شي .

دشيخ اسماعيل نيکه منظومې نـارې لـس څپيزه مثـنوي ده چـې فشـاريې پـه څلورمه اونهمه هجا باندې راځي او عروضي وزن يې دسيلابونو تونيـک سيستم لـه مخې په لاندې ډول دی :

ں ں ں - / ں / ں ں ں - / ں /

دشيخ اسماعيل نيکه منظومې نارې چـې پـه پورتنـی وزن ويـل شـوې دي پـه لاندې ډول دي :

کـــه بـــون دی يـــون دی مخکـــې بيلتـــون دی
لـــه کســـی غـــره څخـــه خي خربښـــون دی
کـــــــه وروره وروره خربښـــــــون وروره
نـــه چـــې بيلتـــون کـــړی زمـــا ويرتـــه کوره
حـــی خي مرغـــی لـــه تـــورې کرغـــی لـــه
همـــرولی پاتـــه خي څه برغـــی لپـــه
دخـــدای دپـــاره خربښـــون يـــاره
حـــی هرموـــه کـــړې زموږکـــهول وارډ

زړه مــــــې رپيـــــږي يــــــارمې بيليـــــږي
بيلتـــــون يــــې اور دی ځان پـــــه ســــوځيږي

دپښتو ادب په موجوړواثارو کې دمثنوي شپږ فورمونه ليدل شوي دي چې اتـه ځپيزې لس ځپيزې دولس ځپيزې ، ديارلس ځپيزې ، څوارلس ځپيزې اوشپاړس ځپيزې مثنوي پکې راځي . په پورتنيو فورمونو کې اتـه هجايي او دولس هجايي مثنوي ګانې ډيرعموميت لـري ولـې دنوروفورمونـو استعمال يې کم دی . زه به پورتنيو شپږو فورمونو پيداېښت اوتاريخي سير په جلا جلا توګه ګرانو لوستونکيو تـه دعروضي وزنونو اودرکنونو له عروضي تقطيع سره سم پـه مفصلـه تـوګه وړانـدې کړم. مخکې له دې چې دپښتو مثنوي په هرفورم لاس پورې کړم لومړی غواړم چې (دوزنونو اختلاط اوګډون اوډهغې جواز) ترعنوان لانـدې څه رڼا واچـوم .بيا بـه دهربحر دپيداېښت او تاريخي سير څخه په پښتوادب کې وغږيږم .

## دوزنونو اختلاط اوګډون اودهغې جواز :

په پښتو ادب کې دهغومثنوي ګانــو چې دبيـت دهجاوو شـميرېې جفت وي دبيت دهرنيم بيتی دوروستی رکن يعني عروض اوهجا اخرنی هجا کميـدلای شي دوروستنی رکن دوروستنی هجا ماقبل اخر په فشار لرونکی هجاوې دغه کميدنـه په وزن کې خرابي او ګډ وډي نه راولي . په پښتو کې هغـه مثنـوي ګانـې چې دبيـت دهرنيم بيتی وروستنی هجا يې کميدلی شـي اتـه هجـايي ، لـس هجـايي ، دولس هجايي او شپاړلس هجايي مثنوي ګانـې پکـې راځي ، يعنـې داتـه هجـايي مثنـوي دبيت دهجاوو شمير ( ۸+ ۸) يا (۷+۷) او دلس هجايي مثنوي دبيت دهجــاوو شـمير (۱۰+۱۰) يا( ۹+۹) او ددولس هجايي مثنوي دبيت دهجـاوو شـمير پـه (۱۲+ ۱۲) يـا (۱۱+۱۱) او دشپاړلس هجايي مثنوي دبيت دهجاوو شمير به (۱٦+۱٦) يـا ( ۱۵+۱۵) وي . اوپه دې پورتنيو څلورو واړو فورمونو کې به دنيـم بيتـی دعـروض يـا عجـز وروستنی بې فشاره هجا کميږي اوماقبل الاخر هجاء به يـې فشـار لرونکـی وي .پـه دې رساله کلې مادبې فشاره هجا لپاره دغه علامه (ن) او د فشار لرونکی هجاله پـاره دغه علامه (ـ) ټاکلي ده .

په ديارلس هجايي کې دبيت دنيم بيتی وروستنی هجـاکې کموالی نـه راځي څکه په دې ډول مثنوي ګانو کې دنيم بيتــی دعـروض اوعجـز وروسـتنی هجـا وې فشارلرونکې وي .

دپاتې څلورو ډولونو چې دبیت دهرنیم بیتی هجاوې یې پوره او کله کله دبیت دهرنیم بیتی وروستنی هجا کمیږي اوپه وزن کې یې ورانی نــه راولي . یـو، یوبیت دنمونې په توګه دعروضي تقطیع له مخې دسیلابو تونیک سیستم پراساس دفاضل استاد پوهاند رشاد په لارښوونه راوړم :

الف : داته هجایي دوه ییځ ( مثنوي ) عروضـي بـنه دسیلابوتو نیک لـه مخـې داسې ده :

اته هجایي : ں ں – ں ں ں – ں

اووه هجایي : ں ں – ں ں ں –

داته هجایي او اووه هجایي بیتنو بیلګې له پورتنی ترتیب سره سمې پـه لانـدې ډول دي . (۲)

| | |
|---|---|
| اته هجایي : | یوپربـــلـــــه \| عـــاشـــقـــان یو \|\| |
| | پخـپل عـــشق کـــې \| صـــــادقـان یو \|\| |
| اووه هجایي | زه عــــــاشق یم \| یـــار هـم نیـــز \|\| |
| | نـور خـــه نـه لـــــــرو تمیــــز \|\| |

ب : پښتو لس هجایي مثنوي :

عروضي بڼه یې دسیلابوتونیک سیستم له مخې په لاندې ډول ده :

لس هجایي : ں ں ں - ں ں ں ں - ں

نه هجایي : ں ں ں - ں ں ں ں -

دلس هجایي اونه هجایي مثال په ترتیب سره په لاندې بیتونوکې وګورئ :

چې دعـــــــر \| بو \| دملک یـو مـــــرد \| وه \|\|
خـجستــه نام \| وه \| پـــــه عــقل فـرد \| وه \|\|
وا یې ویونـــــــکی \| د دې قـــــــصې \|\|
چې تـل یی ښکار \| وه \| دښـــــه هوســـې \|\| ( ۱ )

ج : همدارنګه ددولس څپیزې مثنوي عروضي بڼه دسـیلابو تونیـک سیستم لـه مخې په لاندې ډول ده :

دولس هجایي : ں ں – ں ں ں – ں ں ں – ں

یوولس هجایي : ں ں – ں ں ں – ں ں ں -

دپورتنی عروضي بڼې سره سم یي یو یو بیت دبیلګې په توګه وړاندې کوم :

| | |
|---|---|
| دولس هجایي : | پـه همــــــه وا \|ړو دې توی د \| رود رحـــــمت وي \|\| |
| | سرفـــــرازدې \| پـــه همت د \| دې هـــــمت وي \|\| |

دحمــــيــد دي | داحلقـــه د | بندگي ||
تــل پـه غـــــورږوي | لـــكـه دم د | زنـدگي || (۲)

يوولس هجايي :

د : شپاړس هجايي مثنوي : ددې اوږدې شپاړس هجايې مثنوي عروضي بـڼه د سيلابو تونيک سيستم پراساس په لاندې ډول ده :

شپاړس هجايي : ںں-ں ںں-ں ںں-ں ںں-ں

پنځلس هجايي : ںں-ں ںں-ں ںں-ں ںں-

دپورتنيو عروضي فورمونو مثالونه په ترتيب سره راوړم :

بـــوډۍ ووې | شـــهــــزاده تـه | تـه غم لرې | كـــړه لـه دلـه ||
ځـه دې غم دی | ځلـــــه غم كـړې | غـرض دې | شـــوه بلبله ||

كله كله دځينو بيتونو دنيم بيتيو دعـروض او عجـز وروستني هجـا چـې مـاقبل الآخري اوږده ( فشارلرونكي هجاوي ) خذف كيږي اودبيت دهجاوو شـمير (۱۵-۱۵) كيږي ، لكه په لاندې بيت كې :

بيا يـــــــى تاو كا | په ذهبــــــو | په پيشلو كې | پيـچ و پيچ ||
چې دچـــــاپه | لاس بـه راشي | پوره شـــوی | گـز پـه مـيـچ || (۳)

لنډه داچـې پـه پورتنيـو ځلـورو فورمونـو كـې پـه دې شـرط چـې دعـروض اوعجزماقبل الآخر هجافشار لرونكى وي ،وروستنى بې فشـاره هجـا حـذف كيـدلای شي اووزن ته گډوډي نه پيښوي . په مثنوي كې حتمـی ده چـې دبيـت دواړه نيم بيتى به دهجاوو په شمير كې سره برابروي . (۴)

## ماخذونه :

(۱) - هوتک ، محمد پټه خزانه ، كابل پوهنتون ، ځلـورم چـاپ . ۱۳۵٦ كـال، ۱۰ مخ .

(۲) - وگ : حبيبي ، پوهاند عبدالحى ، پښتانـه شـعراء ، لومړی ټوک ، كـابل ، ۱۳۲۰ كال ، ٦۷ مخ دمثنوي تر عنوان لاندې دوهم او لومړی بيت .

(۳) - خليل ، وركه خزانه ، لومړی ټوک ، پيښور ، ۱۹٦۰ كال ، ۲۷۹ مخ ، دوهم او لومړنی بيت .

(۴) - ماشوخيل ، حميد ، شاه وگدا ، دهميش خليل په تصحيح ، دپيښورچـاپ ۱۹۵۷ م كال ، ۳۹ مخ وروستنی بيت .

(۵) - وک: دامانت مليارد منظومی چاپي قصې " قصــه شـهزاده دل افـزاودل افروز" پيښور چاپ ، ۷ مخ ، لومړنی بيت او دهمـدې صفحـې دپـای بيـت څخه دمخه بيت.

(٦) - دوزنونو دلختلاط او ګډون او دهغې دجواز په برخه کې دپوهـاند رشـاد ددرسي نوټونو څخه زياته استفاده شوې ده.




# پښتو اته څپیزه مثنوي او د هغې تاریخي سیر

په اته څپیزه مثنوي کې فشار په دریمه او اوومه هجا راځي ځینې بیتونه یې اتــه هجایي او ځینې یې اووه هجایي وي. خو شـرط یـې دا دی چـې پـه اتـه هجـایي مثنوي کې به د هر بیت نیم بیتي اته څپه يي او په اووه هجایي کې به د بیـت هـر نیم بیتي اووه هجایي وي.

یعنی په اته هجایي مثنوي کې د هر بیـــت د هجـاوو شـمیر (۷+۷) تـه رسـیږي. عروضي بڼه یې د سیلابوتونیک سیستم له مخې په لاندې ډول ده:

اته هجایي: ں ں = ں | ں ں – ں ||

اووه هجایي: ں ں – ں | ں ں -||(۱)

په پښتو ادب کې چې ما د مثنوي په برخه کې کومــه څېړنـه کـړې ده د څېړنـې پـه لړکې د موجودو موادو له مخې دا راته څرګنده شوې ده چې د قافیوي رعـایت لـه مخې د مثنوي په بڼه بیلګه د ( ۷۸۰- هـ – ق ) د اکبر زمینداوري په اشعارو کـې ګورو چې اته څپیزه مثنوي یې د لومړي ځل لپاره ویلې ده.

اکبر زمینداوري له نوموړکو شاعرانو څخه دی پوهاند حبیبي د نومـوړي شاعر د شعر ځوپانې په زمینداور کې موندلې دي چې د هغو موندل شوو پـانو پـه مرسـته دا نوموړکی شاعرپیژندلی شو.

اکبر د مغلو د دورې په ابتدا کې ژوندی و. دی په یوه بیت کې وایي:

د مغلو تمر(۲) هسې په اورو سوم چې به هیر په دې ماتم زمینداور کړم

د اکبر له پورتني بیت څخه معلومیږي چې دی د ګوډ تیمور معاصر دی. څرنګه چې د ګوډ تیمور د پاچهي دوره د (۷۷۱ هـ څخه تر ۸۰۷ هـ ) پورې رسیږي نو مـوږ د

اکبر د ژوندانه زمانه له (۷۵۰ هـ ق) څخه وروسته اټکل کولای شو. د اکبر ډیر لږ اشعار د زمانې له ناخوالو څخه خوندي پاتې دي. په شعر کې یې یوازې د غزل او مثنوي بیلګې شته. اکبر لومړنی پښتون شاعر دی چې د مغلو له لاسه شکوه کوي. وروسته نور شاعران، لکه خوشحال خان، حمید مومند، رحمان بابا او خواجه محمد بنګش او داسې نور د مغلو د ظلمونو څخه شکایت لري.

دا دی د اکبر د "مثنوي" تر عنوان لاندې څو بیتونه چې د پښتو په لنډ بحر کې ویل شوي دي. د عروض رکنونو له تقطیع سره سم د بیلګې په توګه راوړم:

| | |
|---|---|
| زه عـــاشق یم | یار هم نیـــز |
| نـور څـــه نـه لـ | ــرو تمیـــز |
| یو پـــــــریلـــه | عـــاشـــقـان یو |
| په خـپـل عـشق کـې | صـــادقـان یو |
| یـو پـه بـل پـســا | ې رنـځـــوریو |
| چې نـږدې نـــه | یو مـــهـــجوریو |
| عـــشق کـه ښـه دی | کـــــه بلا دی |
| پـــیداکـــړی | زمـــوږ (۳) مـــولا دی |

په پورتنی مثنوي کې چې د پښتو په لنډ بحر کې ویل شوې ده، اکبر د عشق او مینې خوندو رحالتونه تصویر کړي دي. چې عاشق او معشوقه یې یو له بله غواړي. یوه د جذب او ائتلاف قوه په ټولو کائناتو کې ساري ده، چې عارفان یې عشق بولي او د ساینس پوهان یې د جاذبې په نامه یادوي. اکبر دغه معنوي کیف په یوه مادي رنګ کې ښودلی .د اکبرد شعر ژبه خوږه او روانه ده (۴).

بل پښتو شاعر چې د " ساقي نامه" تر عنوان لاندې یې د پښتو په لنډ بحر کې د مثنوي په توګه شعر ویلی دی د (۸۹۰ هـ) په حدودو کې زرغون خان نوروزی دی. نوروزی د پښتنو لویه طایفه ده چې په فراه ، کدنی او په هرات کې اوسي. زرغون خان د دوست محمد کاکړ د غرغښت نامی په حواله لیکي چې زرغون خان اصلاً د نوزاد (هلمند) و. د قوم مشرتوب یې درلود. په هغه وخت کې چې د ماوراءالنهر شیباني خان په هرات او سیستان هجوم وکړ، زرغون د خپلې خاورې نه د شیباني خان په مقابل کې دفاع کوله او له متهاجمینو سره یې سختې جګړې کړې دي. زرغون خان په (۸۹۱هـ) کال د هرات ، خراسان او عراق سفر وکړ ،کله چې شیباني خان سیستان ته ورسید نو زرغون له ده سره جنګونه وکړل اودهغوی ډیر کسان یې

مره کړل. داسې معلومېږي چې زرغون يو ملي قايد او د وطن د آزاديخواهي مدافع او توريالی سړی و. (۵)

دوست محمد کاکړ هسې روايت کوي: چې په سنه ۹۱۲هـ زه هرات ته ولاړم. په کجران کې مې د ملا ايوب تيمني څخه د زرغون د غزلو او شعرونو ديوان وليد چې درې سوه پاڼې يې درلودې. همدارنګه پټه خزانه د دوست محمد کاکړ له روايته ليکي چې زرغون خان ډېر عمر ژوندی و او په ډېر سپين ږيرتوب په (۹۲۱هـ) د قندهار په ديراووت کې وفات شوی دی. دوست محمد کاکړ په خپله غرغښت نامه کې دا لاندې دوه ييخ (مثنوي) د ده د اشعارو له ديوانه را نقل کوي چې د پټې خزانې مولف هم له هغه کتابه را اخيستی دی. دا دی د زرغون خان د "ساقي نای" څو بيتونه چې د پښتو په لنډ بحر کې ويل شوي دي د بيلګې په توګه راوړم:

ساقي پاخه پياله راکړه | سرور يار مې پخلا کړه
اوبه تويې په لنبو کړه | اوز مې مړ په دې اوبو کړه
پسرلی سو غنچه ګل کا | زلفې تاوې د سنبل کا
بلبلان شور و فغان کا | کړيدن په ګلستان کا
زاهد وزي صومعې څخه | شراب پيري ميخانې څخه

د زرغون خان ساقي نامه چې د نهمې هجري پېړۍ له آثارو څخه شمېرل کيږي د پښتو ژبې اختلاط له پارسې سره ښکاره کوي. هغو پښتنو چې په سمواوهموارو کې ژوند کاوه د فارسي له ادب څخه متاثره شول چې د زرغون خان پورتنی مثنوي چې زياتره کلمې يې پارسي او عربي دي. دا رنګه د شاعر تخيل او د ادا طرز او د کلام نوعيت پوره فارسي ته ورته دي کوم ادبي جريان چې په منځنۍ اسيا او خراسان کې و دغه ساقي نامه يې ښه نماينده ګي کوي. د فارسي ژبې په پخوانيو شاعرانو مخصوصاً د غزنوي دورې (۴۰۰ هـ) څخه بزمي اشعار اوخمريات ډېر شوي دي. زياترو فارسي ژبو شاعرانو دخپلو قصايدو تشبيب او نسيب په بزمي مضامينو شروع کاوه لکه عنصري، منوچهري، عسجدي او نور. وروسته سنايي او نور متصوف شعرا د عرفان په جامو کې د وحدت شراب چښي او دا کيف په عرفاني ډول پخپلو اشعارو کې تمثيلوي دغه ډول بزمي او خمريه اشعار په مثنوي کې ځای مومي او په نتيجه کې ساقي نامه

د مثنوي په سبک یو جلا فن ګرځي، په دغو ساقي نامو کې د شاعرانو لار داوه چې دوی به له ساقي څخه د سرو شرابو آرزو کوله. د ساقي - جام او صراحي او میوصفات به یې بیانول. د دنیا بي وفايي او څو ورځې ژوند په خوښۍ تیرول او بزم په میو تودول د ساقي نامو عمومي مضمون و. شاعر به د مثنوي په سبک دا مطالب بیانول. حسن طلب او حس تعلیل د بیتونو رواني د ساقي نامو له ادبي ښیګڼو څخه شمیرل کیده. لنډه دا چې د عربو خمریه اشعارو تقلید په عجمي شاعرانو کې په فارسي ادب کې رواج شو، په ساقي نامو کې د شاعر استادي دا وه چې د مستۍ او وجد احوال تصویر کړي او د مستانو په څیر خبرې وکړي. د استادانو ساقي نامې ټولې له مستۍ، وجد او ذوقه ډکې دي. او هغه شاعر چې ساقي نامې به یې پورتني صفات نه درلودل د ادب له پلوه ښې نه شمیرل کیدلې.

زرغون خان هم پخپله پښتو ساقي نامه کې د استادانو په لار تللی او مستانه وینايي کړیده. د شعرژبه یې روانه او خبرې یې د مستانو په څیر دي د ده ساقي نامه د پښتو له پخو اشعارو څنې شمیرل کیږي ځکه ده په خپله ساقي نامه کې پورتني خصایص او صفات په نظر کې نیولي او پدې فن کې په ټولو شیانو بریالی دی. (٦)

همدارنګه په پښتو ادب کې زرغونه کاکړه لومړنۍ ښځه ده چې د شیخ مصلح الدین سعدي فارسي بوستان یې په (٩٠٣هـ) کې په خفیف بحر کې په پښتو نظم د مثنوي په توګه ترجمه کړ. (٧) چې د هغې یوازې یو حکایت د پټې خزانې به ذریعه موږ ته را رسیدلی دی. هغه حکایت په لاندې ډول دی چې څو بیتونه یې د بیلګې په توګه را نقلوم:

| | |
|---|---|
| اوریدلې مې کیسه ده | چې له شاتو نه خوږه ده |
| د اختر په ورځ سهار | بایزید چې وو رویدار |
| له حمامه را وتلی | په کوڅه کې تیریدلی |
| ایرې خاورې چا له بامه | را چپه کړلې ناپامه |
| مخ او سرېې سو ککړ | په ایرو په خاورو خړ |
| بایزید په شکر ګښو سو | د خپل مخ په پاکیدو سو |

په همدې ترتیب دوست محمد کاکړ د مثنوي په خفیف بحر کې " غرغښت نامه" (۹۲۹ هـ) په پښتو نظم کړې وه چې د غرغښت نیکه له احوال څخه یې حکایت کاوه. (۸) او ځینې نور مضامین یې هم درلودل، لکه د زرغون خان ساقي نامه. د پټې خزانې مولف یو حکایت ځینې را نقل کړی دی. ولې پخپله د دغه کتاب نسخه نشته. د پټې خزانې د را نقل شوي حکایت څو بیتونه را تقلوم:

له نیکانو راویت دی هسې توګه حکایت دی
نورمحمد کاکړ راوي دی چې یې فیض تل جاري دی
د نیکانو له خولې وایي چې منښت یې راته ښایي
چې کاکړ نیکه زاهد و لوی ځښتن له تل عابد و
تل تر تل یې عبادت کا پر دې لیار یې ریاضت کا

همدارنګه ملا الف هوتک د پښتو په لنډ مثنوي یو کتاب د بحرالایمان په نامه د محرمې په څلورمه نیټه (۱۰۱۹ هـ) کال منظوم کړی دی. پدې کتاب کې دی اسلامي عقاید بیانوي. د کتاب نوم او عناوین هم عربي دي. نوموړي په اسلامي علومو کې لوی لاس درلود. وینا یې ډیره ساده او له تکلف نه خلاصه ده. په کلام کې یې صنایع او بدایع نه لیدل کیږي. یوازې خپل مطلب په موزونو کلماتو وایي او د پښتو له محاورې څخه نه وزي. دی د دیني او اخلاقي شاعرانو لومړنی سړی دی. د ده په اشعارو کې پرته له دیني او اخلاقي مضامینو نور څه نه لیدل کیږي او د دیني او اخلاقي سبک موسس دی. (۹)

د ده د بحرالایمان څخه چې د پښتو په لنډ مثنوي ویل شوی دی، څو بیتونه د نمونې په توګه راوړم:

راشه واوره اې فرزنده تاته وایم! ارجمنده!
ته د پاک نبي (ص) په لار سه د نبي (ص) په لار ولاړ سه
یو قدم له شرعې زویه بیرون مه اخله نیکخویه
که بیرون یو قدم کښیږدې د نبي شرعه به پریږدې
نصیحت کوم و تاته مه جار وزه بله خوا ته

په همدې ترتیب امیر د پښتو نوموړکی شاعر یو کتاب د تجوید په نامه په لنډ بحر کې په ۱۰۲۳ هـ منظوم کړی چې د بیتونو شمیر یې (۳۰۰) ته رسیږي. په شعر کې یې رواني او سلاست شته (۱۰) امیر د خپل تجوید پیل په لاندې بیتونو کوي:

تل ثنا وایم شکرونه　　د خاوند په نعمتونه
چې قرآن یې راستولی　　په سرور باندې راغلی
چې ایمان یې له عرفانه　　مور ته ونښوله ترانه
صد هزار رحمت صلواة شه　　په سرور نبي لا زیات شه
چې پاک نوم یې سر دفتر دی　　او سردار د بحر او بر دی

د پښتو ادب د ډګر نامتو لیکوال او پیاوړی شاعر خوشحال خان خټک څلور منظوم آثار هر یو طب نامه (۱۱) د یو لسمې پېړۍ د دوهمې نیمایي منظومه او فضل نامه (۱۲) د (۱۰۸۵ هـ . ق تالیف)، اخلاق نامه (۱۳) او فراق نامه(۱۴) د پښتو په لنډ بحر کې د مثنوي په توګه منظوم کړي دي چې د هر یوه څو بیتونه یې د بیلګې په توګه راوړم:

د طب نامې بیلګه:

په دارو کې چې ښه نیت وي　　دارو نه وي عبادت وي
عبادت په روغ صورت شي　　ګنه کله عبادت شي
ما د طب په کتابونو　　نظر کړي په بابونو
چې هر رنځ لره دوا ده　　هلیله ده هلیله ده

د فضل نامې بیلګه:

کل ثنا په ده ښایي　　چې ثنایې هر څوک وایي
که څوک کوز دي که څوک پاس دي　　د ده واړه په سپاس دي

د اخلاق نامې بیلګه: د خوشحال خان اخلاق نامه چې د خپل ژوندانه په وروستیو شپو کې نظم کړې، د پیل بیتونه یې دادي:

بغ وهلی نه وي پرونه　　بڼ یې واوري په غوږونه
چې ناکښلی په قلم وي　　په هغه رقم اعلم وي

د فراق نامې بیلګه:

د فراق نامې د پای دوه بیتونه یې د نمونې په توګه راوړم:

هم په دا مې اختتام دی　　په همه وو مې سلام دی
کال دغم لاړ میاشت اختر وه　　دا نامه چې چې نظم زر وه

همدارنګه د خوشحال زوی عبدالقادر خان خټک په ۱۱۱۲ هـ.ق کې د مولانا عبدالرحمن جامي یوسف زلیخا د (۸۸۸ تالیف) د نظم د شکلی سکښت له مخې د مثنوي په بڼه په خفیف بحر کې له پارسي منظومې څخه په پښتو منظومه اړولې ده.

ترجمه يې ډيره روانه خوږه او د مطلب د افادې تر عهدې په ښه توګه وتلی دی.
(۱۵) دا دی د عبدالقادر خان د پښتو يوسف زليخا د پيل څو بيتونه د نمونې په توګه راوړم:

عنايت ربه په ما کړه        د اميد غنچې وا کړه
په خندا کې باغ زما کړه        معطر دماغ زما کړه
شناسا مې په نعمت کړه        ما ګويا په خپل صفت کړه

په همدې ترتيب صدر خان دخوشحال زوی دخپل پلار دادبي مکتب پيرو او پياوړی اديب دی . کلام يې دخپلې کورنۍ دنورو شاعرانو په شان خوږ او روان دی – نوموړی د " ادم اودرخانۍ کيسه " د ( ۱۱۱۸ھ ق تاليف ) (۱٦) اودمعجزې په نامه يو کتاب (۱۷) دپښتو په لنډ بحر کې دمثنوي په ډول نظم کړی دی چې دهريوه بيلګه په لاندې ډول وړاندې کيږي :

دادم اودرخانۍ دکيسې بيلګه :

زما پلار ځای يې جنت شه        په اولاد يې برکت شه
نيکو خلق نيکوګفتارو        نورانی علوي ديدارو
خلق يې هسې په اوصاف و        چې ترې هيڅ داهو ناف و
دهنر دعلم کان و        عاليجاه عظيم الشان و

دمعجزې بيلګه :

حمد ثنا به داحدکړم        [چې ] په نعمت يې داحمدکړم
چې کثرت خواهش احدکړ        له احده يې احمدکړ

ملاشيرمحمد هوتک په (۱۰۹۲ ھ ق ) کال په کندهار کې زيږيدلی اوپه ( ۱۱۷۵ھ ق ) کال کې وفات شوی دی . دده اشعار ټول دمثنوي په فورم دي ..
نوموړی دوه منظوم کتابونه هر يو " اسرار العارفين " او " تجويد افغاني " په نامه دپښتو په لنډ بحر کې په مثنوي نظم کړي دي .
دده " اسرار العارفين " يو ديني او مذهبي کتاب دی .دعقايدواواصول مضامين يې دمعتبرو علماوو له تصنيفونو څخه را اخيستی اوکټ مټ دايت اوحديث مضمون په پښتو ترجمه کړی دی . ده په ديني علوموکې لوی لاس درلود . دعقيدې اومذهب ګران مسايل يې په ښه شان په پښتو اړولي دي .
په علم قرائت کې هم دښو معلوماتو خاوند و .دده " تجويد افغاني " څوفصله لري . (۱۷)
دادی دده دهريوه اثرڅو څو بيتونه دبيلګې په توګه راوړم :

داسرارالعارفين بیلګه :

نه يې شکل نه صورت شته    نه يې خوب نه يې غفلت شته
نه يې پلارشته نه يې مورشته    نه عورته نه يې خورشته
نه دی جسم نه جوهر دی    نه عرض نه مصور دی

دتجويد افغاني بيلګه :

ته اصلي حرفونه وروره    دقرآن اته ويشت ګوره
همزه الف راوره يکسانه    دويي نشته له داميانه
بيا هرحرف سره مقام دی    چې مخرج دهغه نام دی

همدارنګه دسيد حسن په نامه يوپښتون شاعر " سيرة النبي " ياشمايل نامه دپښتو په لنډ بحر کې په اته څپيزې مثنوي نظم کړې ده . (۱۸)

ددې منظومې قلمي نسخه دهند درامپور په رضا کتابخانه کې موجوده ده چې ۱۵۸ مخونه لري او پوهاند رښتين ليدلې ده ، نوموړي پوهاند " درامپور درضاکتابخانې قلمي نسخې " تر عنوان لاندې دکابل په مجله کې د ۱۳۴۳ کال دليندۍ په ګڼه کې دقلمي نسخې دمعرفي په برخه کې يوه عالمانه مقاله ليکلې ده.

دغه سيرة النبي ياشمايل نامه په لاندې بيتونو شروع کيږي :

اول وايه په زبان    بنه ثنا دپاک سبحان
بيا درود په پيغمبر دی    چې ترکل جهان بهتر دی
پس له حمده له صلوة    راشه واوره وايم تاته

سيد حسن دخپلې منظومې دختميدو نيته دمعما په ډول داسې ښيي :

سنه هجريه شماره شوه - په څلورحرفه پوره شوه
يوالف راغی بل کاف - قصه ختم پر غين وقاف

چې دجمل حساب له مخې دپورتنې معما له حل څخه دمنظومې دتاليف نيته (۱۱۲۱ ه) جوړيږي . همدارنګه ملاپيرمحمد مياجي دملا سردار زوی ددولسمې هجري پيړۍ په لومړي نيمايي کې د (افضل الطرايق ) ترعنوان لاندې په علم اخلاق کې يو مثنوي دپښتو په لنډ بحر کې ويلی دی .

ملا پيرمحمد مياجي دحاجي ميرويس خان سره دآزادی په جنګونو کې ملګری و ، کله چې شاه محمود اصفهان ته ولاړ دی يې هم اصفهان ته وباله چې خلک شريعت او دامام اعظم صاحب مذهب ته راوبولي .

ملا پيرمحمد له رافضيانوسره مباحثې اومناظرې وکړې او دعلمي دلايلو له مخې يې رافضيان پره کړل او دروم دعلماوو له خوا چې په اصفهان کې وو ملا پيرمحمد مياجي ته د ( پير افغان لقب ) ورکړ شو . (۱۹)

دپټې خزانې مولف محمدهوتک هغه حکايت چې لـه دې کتاب څخه رانقل کړی څو بيتونه يې دبيلګې په توګه راوړم :

شيخ متى چې خليلي و    دی له آره لوی ولي و
يوه ورځ روان په لار و    لوی څښتن په استغفارو
کړه ده ذکر دغفار    يوشيبه نه و وزګار

همدارنګه بابوجان بابي په (۱۱۲۹هـ ) کې د " شها اوګلان (۲۰) " قصـه چـې پـه پښتنو کې مشهوره ده دپښتو په لنډ بحر په مثنوي منظـوم کـړې ده چـې د " قصص العاشقين " په نامه يادېږي .نوموړی دعشق په ستاينه کې وايي :

عشق يو هسې توريالی دی    چې په هرځای يې بری دی
دعشق اور هسې سوزان دی    چې سوځلی يې جهان دی
زړه بې عشقه کله زړه دی    چې بې عشقه زړه دمړه دی

همدارنګه بل پښتون شاعر چې په پښتو ادب کې يې پـه لنډ بحـر کـې مثنـوي ليکلی دی. ملا عبدالرشيد (۲۱) دسلطان حسين زوی دعبدالرحيم لمسی او دملتان ديوې روحاني او علمي کورنۍ غړی دی .دې تر (۱۱۲۹ هـ ) پورې ژوندی و ، څکـه ده په همدې کال رشيد البيان ليکلی دی . ده رشيدالبيان په لنډ بحر کې دمثنـوي په بڼه ليکلی چې څو بيتونه يې دبيلګې په ډول ليکم :

چې محکم په لمانځه اوسې    له دنيا به ايمان يوسې
هم به خدای رضا من شي    پرې اسان به څنکدن شي
تاريکي به ترې رب دور کا    پرې به قبر کلی نور کا

په همدې ترتيب دپښتو ادب پياوړي نازکخيال شاعر حميد مومند په (۱۱۴۸هـ ) دشرعة الاسلام (۲۲) منظوم عربي متن دپښتو په لنډ بحر کې دنظم دشـکلي مکتـب له مخې دمثنوي په توګه په پښتو ترجمه کړی چې دبيتونـو شـميرېې پنځلس زروتـه رسيږي . دحميد پښتو شرعة الاسلام منظومه قلمي نسخه دافغانستان دعلواکادمي پـه کتابخانه کې موجوده ده .

دحميد پښتو شرعة الاسلام په لاندې بيتونو پيل کيږي :

هله ماکړه له سپو طمعه    پورې تلم ددوی په جمعه
اوس زما دهډ په طمعه    ګيرچير ګرځي دسپو جمعه

زرکړي زشته په داده چې مشاطه ددنیا ده

همدغه راز محمد فهیم دپښتوژبې شاعر چې نوم یې په تذکره کې نه دی ذکر شوی یوازې دهغې منظومې رسالې له مخې چې " نورنامه " نومیږي اوپه (۱۲۹۸هـ) په هندوستان کې خپره شوې او بناغلی رفیع صاحب په ادبي ستوري کې دفهیم او دهغه دنورنامې په برخه کې هر اړخیزه معرفي کړې ده . پېژنو. دنوموړی دژوند زمانه نه ده معلومه یوازې نوموړی " نورنامه " د ۱۱۴۹ هـ ق کال دعاشورې په ورځ دمحرم الحرام په لسمه نیټه پښتو کړېده ،لکه چې وایي :

چې خاتمه دنورنامې وه هغه ورځ دعاشورې وه

سته دهجر په داتم وه چې څلور حرفه کې ضم وه

" عَین " او " قاف " کړه په شماره " میم " او " ط" کړه نندارِه

په پښتو ادب کې نورې نورنامې هم په نظم ویل شوي ،لکه د " غلام نوي " نورنامه او دجان محمد نورنامه ولې دغه نورنامې دقافیې درعایت له مخې دقصیدې په بڼه نظم شوي دي .

محمد فهیم خپله نورنامه دمثنوي په بڼه دپښتو په لنډ بحر کې په (۷۵۰) بیتونو کې نظم کړې ده دنظم ژبه یې خوږه اوروانه وه . (۲۳) دمحمد فهیم دنورنامې څو بیتونه دبیلګې په توګه وړاندې کوم :

تل ثنا به درب وایم څوژوندې په دادنیا یم

توفیق راکړی زما ربه په ثنامې سرکړې ژبه

داسنګین زړه زما پاره کړه خپل جمال ترې رابنکاره کړه

اوردمیني په مابل کړه په دا اورکې مې جلبل کړه

میافقیرالله جلال آبادي (۱۱۹۵ مړ ) دوه منظوم اثرونه هریو فوایداو اسماء الحسنی چې دکیمیای سعادت اوشرح اسماء الحسنی په نامه پهیوه پښتی ( وقایه ) کې په چاپ رسیدلی دی . فاضل استاد پوهاند رشاد دخپل علمي تحقیق اوڅیړنې په لړ کې دانتقادي متن په ترتیب کې دا ثابته کړې ده چې فواید اوشرح اسماء الحسنی منظوم آثار په میافقیرالله پورې اړه لري اوپه ( ۱۱۵۱ هـ ق ) کې دمثنوي په بڼه په خفیف بحر کې ویل شوي دي .

دمیافقیرالله فواید دوې برخې لري . یوه یې ددعا برخه او بله ددوا برخه ده. ددعا برخه یې په هغو بیتونو پیل کیږي چې وروسته به دفواید په بیلګه کې راوړل شي ،ددوا برخه یې په دې بیت شروع کیږي :

دحکمت له علمه یاره وایم تاته برخورداره

دفوايد دعابرخې دبیتونو شمیر (۳۳۱) او ددوا برخــې دبیتونــو شـمیر (۲٦۴) تــه رسیږي چې په دې حساب دفوايد دعا او دوا دبیتونو شمیر (۵۹۵) کیږي . (۲۴)

داسماء الحسنی منظومه دکیمیــای ســعادت دلومړنــۍ صفحې دحاشــیې څخــه شروع کیږي . د (۵۰) صفحې دحاشیې پورې دوام کوي . دبیتونــو شــمیر يــې (۴۸۷) کیږي . (۲۵)

پاتې برخه یې په کیمیای سعادت پورې اړه لري چې زه دخپل تحقیق اوڅیړنــې په لړکې دهغې دناظم سره اشنا نشوم او دامې ونکړی شو چې شاعر یې معرفي کړم.

دادی دهریوه اثر بیلګه چې دپښتو په لنډ بحر کې دمثنوي په شکل ویل شــوې ده . ګرانو لوستونکیو ته وړاندې کوم ؛ د فوايد بیلګه :

خواجګانو ختم جانه　　په دانوع کړه پردانه

که مشکل چاته دوچارشي　　خلاصې نه مومي په دارشي

ددغه مراد دپاره　　ختم وکاندي دلداره

داسماء الحسنی بیلګه :

ربه ستاثنا به وایم　　خوژوندی په دادنیایم

کل ثنا ده ستالایقه　　ای دکل جهان خالقه

کیمیای سعادت له کتاب دلومړی صفحې څخه شروع کیږي او تر ۵۴ مخ پــورې دوام کوي . دغه کتاب دکیمیای سعادت وشرح السماء الحسنی پــه نامــه دحاجي بهره ورواوحاجي عبدالاکبر په غوښتنهٔ ددهلي دچشمهٔ فیض پــه مطبعــه کــې چــاپ شوی دی . دکیمیاي سعادت بیلګه :

ثنا وایمه درب　　په ډیر عجز په ادب

دی خالق دکل مخلوق دی　　هم رازق دهر مرزوق دی

اخوند کبیر چې بشپړ نوم یې عبدالکبیر دی (۲٦) نوموړی دلوی احمد شاه بابــا ( ۱۱٦۰-۱۱۸۰ هـ ق ) معاصرو . ده څلور اثره دپښتو په لنډ بحر کې دمثنوی پــه بــڼه په اته څپیزه مثنوي نظم کړي دي چې دهریو بیلګه په لاندې ډول راوړم :

۱ : " در مجالس " : ددرمجالس په بیلګه هغه بیتونه راوړم چې دهغو لــه مخــې د نوموړي کتاب دتالیف نیټه څرګندیږي هغه بیتونه دادي :

زر سل پنځوس کلونه　　دهجرت تیر شوي وونه

پنځه نور هم پرې دپاسه　　وو تیر شوي بې وسواسه

او بادشاه هم نادر شاه وو　　ورسره بې حد سپاه وو

دده سن بیا څلورم وو　　بل راته یې په پنځم وو

درمجالس دفضل احد له خوابه (۱۳۲۸ هـ ق) کال دلاهور په اسلامیه مطبعه کې په ۱۸۰ مخونو کې چاپ شوی دی. (۲۷)

۲: " معجزات " : اخوند کبیر دلوی احمد شاه بابا دپاچهی پراووم کال ددې کتاب په نظمولو پیل کړی دی، لکه چې وایي :

په شروع ددې کتاب شوم    په وکښو درنایاب شوم
سن دهجر چې مې شمار کړ    " سوغق" مې ترې اظهار کړ

د " سوغق" له کلمې څخه دجمل دحساب لـه مخې (۱۱۶۶هـ ) جوړیږي . د "معجزات " (۲۸) کتاب په لاندې بیتونو پیل کیږي :

ای چې خدای واحد احد یې    لم یلد ولم یولد یې
هرچې کړې هغه به وشي    بې دستا دکړو څه نه شي

۳: " دفع الفقر " : داد اخوند کبیر منظومه ترجمه ده . دکتاب پیل په لاندې. بیتونو کیږي :

کل ثنا خدای سره ښایي    چاویلی یایې وایي
هسې خدای چې دی خالق دی    دهمه مخلوق رازق دی

۴: " جنت الفردوس ": جنت الفردوس په لاندنی بیتونو پیل کیږي : (۲۹)

پس له حمده له صلوته    حقیقت وایم زه تاته
هریو کار چې بنده کاندې    وې بو شی باعث پرې باندې
اوپه ماباندې شتاب شته    خود پخپله داکتاب شته

د معزالدین خټک دوه منظوم اثره هریو " ربقة الاسلام " (۳۰) او " دلیل العلیل " نومیږي (۳۱) . دپښتو په لنډ بحر کې تالیف کړي دي . دربقه الاسلام دتالیف نیټه ۱۱۶۰ ه او د " دلیل العلیل " ۱۱۷۷ ه ده .

ربقة الاسلام دلومړي ځل لپاره په ۱۲۹۶ ه کې په ډهلي کې او دوهم ځل په ۱۳۳۰ ه کې په نولکشور پریس لاهور کې دغلام محی الدین حزین په کتابت چاپ شوی دی . دادی لاندې دهریو اثر څو بیتونه دبیلگې په توگه راوړم :

ربقة الاسلام په لاندې پیتونو شروع کیږي :

حمد وخدای له سزاوار دی    چې زموږ پروردگار دی
زه آغاز ده په نام کړم    په داکار باندې تمام کړم

"دلیل العلیل " منظوم کتاب په لاندې بیتونو پیل کیږي :

حمد خدای لره لایق دی    چې دکل مخلوق خالق دی
هرچې څه دی بالاپست    ده کړه کل له نیسته هست

" ربقه الاسلام " له علم عقاید – توحید – فقهي او تصوف څخه بحث کوي. ددې کتاب ښيګڼه داده چې هره مسأله چې له کوم کتاب څخه رااخلي په هغه کتاب حواله ورکوي . معزالدين ددې کتاب په نظمولو کې له ۱۲۱ ماخذونو څخه استفاده کړې ده چې دهغوی نومونه دربقة الاسلام دماخذونو تر فهرست لاندې دتير هير شاعران له ۵۶ مخ څخه تر ۵۸ مخ پورې ذکر شوي دي .

" دليل العليل " يو طبي اثر دی چې په لنډ بحر کې منظوم شوی دی . دغه کتاب ټول ۴۲۱ مخونه لري چې په ۱۲۹۹ هـ کال کې قلمي ليکل شوی او دختکو دعلاقې دموضع تنګاړودميا بازګل فقير خيل په واسطه پښتو اکاډمي پښتور ته رارسيدلی دی .

حافظ مرغزی داحمد شاهی شاهنامه په ۱۱۷۶ هـ کې دپښتو په لنډ بحر په مثنوي منظومه کړې ده . (۳۲) چې څو بيتونه يې دنمونې په ډول راوړم :

اول ثنا ده دسبحان چې پادشاه دی دجهان
که هزار مې شي زبان په څو قسمه کابيان
نه به شي له ماادا که ګويا شي واړه دا

ترکومه ځايه چې ماته معلومه ده احمد شاهی شاهنامه دپښتو په لنډ بحر کې لومړنۍ منظومه حماسي شاهنامه ده چې داحمد شاه بابا دسلطنت له دورې څخه دپاني پت ترجنګه پورې واقعات پکې درج دي . دحافظ مرغزي ددې حماسي شاهنامې له نظمولو څخه مقصد دوه هدفونه وو . يو داچې دلوی احمد شاه بابا امر پرځای راوړي ، ځکه ستر ټولواک احمد شاه بابا دشاهنامې دنظمولو امر حافظ مرغزي ته کړی و . بل هدف داو چې په پارسي کې فردوسی شاهنامه جوړه کړې وه نو په پښتو ادب کې دې هم شاهنامه وي . داحمد شاهي شاهنامې نظمونکی خپله داحمد شاه بابا دلښکر غړی و او هر څه يې پخپلو سترګو ليدلي او دخپلو سترګو ليدلی حال يې بيان کړی دی . ځکه دتاريخي ارزښت له مخې ډير قيمت لري . دفردوسي شاهنامه په فوکلوري روایاتو استناد لري نوځکه يې تاريخي ارزښت نشته یاکم دی . احمد شاهی شاهنامه دپښتور دپښتو اکاډيمی دبريټيش موزيم دقلمي نسخې ( چې په بريټش موزيم کې تر ۴۰۳۱ لمبر لاندې خوندي ده ) له مکرو قلم څخه دښاغلی مشتاق احمد مشتاق له خوا استنساخ او په ۱۹۶۵ کال دجون په مياشت کې دافسيت په ذريعه په ۳۰۲ مخونو کې چاپ کړې ده . حافظ دخپلې استوګنې ځای مرغزمعرفي کوي او مشتاق احمد ، دی دپښتور دسيمې ديو

سفزو دصوابی د " مرغز" اوسیدونکی بولي . پته دې پاتې نه وي چې په همدې نامه یعنې مرغز یوځای دهرات په خواکې هم شته .

شمس الدین کاکا خیل (۳۳) درې منظوم آثار هر یو مناقب جمیل بیگ او مناقب شیخ رحمکار او قصه جرجیس دپښتو په اته څپیزه مثنوي ددولسمې پیړی په اواسطو ( ۱۱۲۰ -۱۱۸۰ ه.ق ) کې چې دده دژوندانه زمانه تخمین کیږي نظم کړي دي .مناقب جمیل بیگ یو پند کتاب دی چې دخوشال خان دسکنی ورور جمیل بیگ خوارق او مناقب یې پکې راوړي دي. داکتاب ۱۲٦ مخونه او ۳۵۰۰ بیتونه لري .دفقیر صاحب پر مناقبو علاوه دحضرت محمد (ص) معجزې او دځلورو یارانو مناقب هم دکتاب په پیل کې خوندي دي .

مناقب جمیل بیگ په لاندې بیتونو شروع کیږي :

توفیق راکړې ربنا　　ستا دحمد ستا دثنا

ته لایق دکل ثنایې　　ته خالق یې ربنا یې

همدارنگه مناقب شیخ رحمکار دبیتونو شمیر دروزرو ته رسیږي دغه مناقب په لاندې بیتونو شروع کیږي :

ثنا وایم دسبحان　　چې رحیم دی هم رحمان

دی قادر دی برکمال　　هم ناصر دی ذوالجلال

همدارنگه " قصهء جرجیس " داد جرجیس علیه السلام کیسه ده چې دبیتونو شمیر یې تر ۷۰۰ اوړي دغه کیسه په لاندې بیتونو شروع کیږي :

اول حمد دذوالجلال دی　　چې یې هر صفت کمال دی

بیا درود په پاک رسول دی　　چې دخدای په در قبول دی

بل پښتون شاعر چې دپښتو په لند بحر کې یې د " علم تجوید " بیان په پښتو نظم دمثنوي په بنه لیکلی دی . محمود رفیق (۳۴) دی مور یوازې ددې اثر په ذریعه پیژنو . نور احوال یې نه دی معلوم . دی په عربي او هندی ښه پوهیده . دمثنوی دلیکلو نیټه یې نه ده معلومه ، یوازې دقلمي نسخې خط او کاغذ دا څرگندوي چې کتابت یې زوړ دی . دقلمی نسخې پر حاشیه یو مهر شته چې سنه یې ۱۱۸۵ ه ده . دا ورڅخه معلومیږي چې نوموړی شاعر خپل کتاب له دې نیټې دمخه لیکلی دی . محمود رفیق وایي چې مادغه کتاب له هندي څخه په پښتو ترجمه کړی دی . دده دغه وینا له لاندې بیتونو څخه ښه څرگندیږي ،لکه چې وایي:

داقاعده په هندي ژبه　　ماپښتو کړه اې طالبه
په پښتو ژبه دوی نه وې　　ځکه ماپه پښتو ووې

اوس دده " تجوید" دنعت ځوبیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

که ته نه وای اې احمده　　هیڅ به نه وای بې احده
بې له تابه نور څه نه وو　　که ته نه وای نور به څه وو
نه آدم نه به حوا وه　　نه پیدا به دادنیا وه
نه به داخلق عالم وو　　نه به لوح ونه قلم و

همدارنګه نورالدین دپښتو ژبې شاعر چې ددولسمې هجري پیړۍ په دوهمه نیمایې کې یې ژوند کاوه د " حنیفیه " په نامه یو فقهي کتاب یې په اته ځپیزه مثنوي نظم کړی او له نظمولو څخه یې په ۱۱۸۰ هجري قمري کې خلاص شوي دی . ژبه یې خوږه او شعر یې روان دی . (۳۵)

دکلام په نمونه کې یې دمنظوم اثر دپای ځوبیتونه دنمونې په ډول را اخلو، ځکه دنوموړی شاعر ددغه اثر دسر برخه نیمګړې ده :

شکر شرحه شوه تمامه　　په توفیق له کردګاره
چې تمامه په خامه شوه　　مسمی " حنیفیه " شوه
که زما ویل ترخه دي　　لایق ستا دطبعي نه دي
باري متن مذکور کښلی　　دی هر چاوته پسند لی

فدامحمد جلال آبادی دپښتو ددولسمې هجري پیړۍ ددوهمې نیمایې شاعرانو په ډله کې حسابیږي . نوموړی دحضرت محمد (ص) وفاتنامه دپښتو په لنډ بحر کې په مثنوي ویلې ده . ددې وفاتنامې دبیتونو شمیر نه دی معلوم فدامحمد پردې مثنوي سربیره خوږې عشقي غزلې هم لري . (۳٦)

وفاتنامه په لاندې بیت پیل کیږي :

دالله صفت به وایم　　هم په جهر هم یې ستایم

اودپای بیت یې دادی :

اوه لسم درجبې کړه　　تاریخ جوړ له فقانبي کړه

همدارنګه یاسین ابدالي داحمد شاهي دورې له نوم ورکو شاعرانو څخه دی چې دکندهار په " جلدک " کې اوسیده نوموړي داحمد شاه بابا دمړینې په کال ۱۱۸٦ه ق د یارمحمد ثمرقندي دقواعدقاري په بنسټ یو پښتو تجوید په اته ځپیزه مثنوي نظم کړی دی . دغه پښتو منظوم تجوید ۷۷ مخونه او ۱۱۰۰ بیتونه لري.(۳۷)

یاسین ابدالي په دې منظوم تجوید کې دځپل ځان معرفي داسې کوي :

نوم زما که غواړي یاد " یاسین " زوی د " کریمداد "
په داډیر ډیر زه راضي یم چې همنام دپاک نبي یم
ګوندې اور په ماحرام که خدای عزت دده دنام که
په نسب " ابدال " یادیږم په " جلدک " ساکن یادیږم (۳۸)
قندهار تابع بادیه ده چې جلدک ددې نامه ده

دادی دیاسین ابدال دپښتو تجوید څوبیتونه دنمونې په توګه راوړم :

پس له حمده له درووده تاته وایم ای مسعوده
چې قاریان ددې قرآن دي واړه یو ویشت دي عیان دي
داسې نه چې یوله بله منکر شوی دي ای دله
ټوله واړه قبلوینه اما یو ، یو خو ښوینه

دیاسین درانی دتجوید یوازینی خطي نسخه دزلمی هیوادمل په کتابخانه کې موجوده ده .عبدالحمید الکوزی دکندهار دیوې لویې علمی کورنۍ غړی و . نوموړی پخپلو آثاروکې دخپل ژوندانه نیټه نه ښیي ولې دځینو قراینو له مخې دده ژوند ددولسمې پیړۍ پای او ددیارلسمې هجري پیړۍ شروع تاکلی شو .عبدالحمید درې اثره هر یو " طریقه ء محمدیه " د " زړه اوزبې آفات " او " خلاصۀ کیدانی " نومیږي . درې واړه منظوم اثرونه یې په اته څپیز مثنوي کې منظوم کړي دي .(۳۹)

" طریقهء محمدیه " . چې په پیل کې یې امنت بالله ترجمه شوې او په نورو برخو کې تصوفي او اخلاقي رنګ کې یې دانسان دتن دبیلو بیلوغړو افات ښودلي چې ټول (۱۱۰۰) بیتونه کیږي .دده دوهم اثر " دزړه او ژبې افات " یوه کوچنۍ رساله ده چې د " طریقهٔ محمدیه " سره مل راغلی او د بیتونو شمیر یې (۳۰۰) ته رسیږي . دایې نه ده ښودلی چې ترجمه ده او که دده خپل تالیف دی. په دریم اثر یعنې " خلاصهء کیدانی " کې عبدالحمید الکوزي ددیني مسایلو مشهوره رساله په نظم ! ړولې او داود اسه ، او لمانځه فرض ، واجبات او نوریې یکې څیړلي دي . زه اوس دهریوه اثر بیلګه په لاندې ډول معرفي کوم :

د " طریقهء محمدیه " څوبیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

کلی حمد ثنا ده یاره لایق ده دخدای دپاره
بیا هرشی چې دی موجود سي په ثنا دخپل معبود سي

" دزړه او ژبې افات " څوبیتونه دنمونې په ډول راوړم :

پس له حمده له صلوته راشه غوږ باسه وماته

چې افات دزړه دي وروره          یا افات دژبې ګوره

د " خلاصه کیداني " څوبیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

الحمدالله الصمد          هم صلواۀ پر محمد(ص)

هم پر آل وپر اصحاب          پر پیرو هم پر احباب

د عبدالحمید پورتنی درې منظومې په یوه پښتې ( وقایه ) کې دښاغلی رفیع په ځاني کتابتون کې شته .

دخلاصهٔ کیداني دترجمې ځانګړې نسخه دښاغلی زلمی هیوادمل په ځاني کتابخانه کې موجود ده .

رحمت داوي (۴۰) چې په قوم داوي او دپښتو شاعرانو په ډله کې په لومړی صف کې ځای لري .نوموړی داعلیحضرت شاه زمان معاصرو او اصلاً کندهاری دی.

رحمت داوي دنظامی ګنجوی لیلی و مجنون ( د ۵۸۴ تالیف ) منظومه قصه دشاه زمان دسلطنت په دریم کال په حفیف بحر کې دمثنوي په ډول په ( ۱۲۱ هـ ق) په پښتو منظوم کړې ده . چې دبیتونو شمیر یې پنځو زرو ته رسیږي . نوموړی ددې په نظمولو دکشمیر په کوهستان کې پیل کړی و . دقلم او کاغذ دنشتوالي له امله کشمیر پایتخت ته راغی او دکشمیر پښتانه والی سردار عبدالله خان په مرسته یې خپل قیمتی اثر تمام کړی دی . دی خپل کتاب دشاه زمان په ستاینه شروع کوي او دسردار عبدالله خان علم دوستی بیانوي، دادی درحمت داوي دلیلی ومجنون پښتو منظومې قصې څوبیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

غمونو ملک را باندې تنګ کړ          زړه مې څکه دا ټهنګ کړ

چې پښتو لیلی مجنون کړم          ښایي غم له زړه بیرون کړم

په فارسي هر چاویلی          پښتو تل ده چالیدلی

څکه زه په پښتوژبه          داقصه کړم عجائبه

پښتون هم خوښ باندې زړه کا          او دعا وماته وکا

حاجي زبردست دپښتو شاعرانو په ډله کې راځي چې نه په تذکرو کې معرفي شوی او نه یې بل ځای دکلام نمونه لیدل شوې وه

ښاغلی رفیع صاحب نوموړی شاعر یوازې دهغه د " ذخیره القراء " نومې منظومې رسالې له مخې معرفي کړی دی . دا رساله دپښتو په لنډ بحر دمثنوي په بڼه په ۱۲۱٦ هـ ق نظم شوې ده . د رسالې له یوه بیت څخه جوتیږي چې نوم یې زبردست و چې د ذُالمعنین په ډول یې درسالې په پای کې راوړی دی، هغه بیت دادی :

گناه کار نوس پرست یم           په معصیت کې " زبردست " یم

په همدغه ډول درسالې په سریزه کې یــو ځای ځان دحاجي پــه نامــه معرفــي کوي ،لکه چې وايي :

حاجي خوار په دعا یاد کړه           په دیدارديِ الله ښاد کړه

داسې معلومیږي چې دی حاجي هم و ، اصلاً بتي زی او د پلارنوم یــې " کـرم خان " او بابا یې " جلال " نومیده (۴۱) دغه مطلب په یوه بیت کې داسې راوړي :

زه له اصله بتي زی یم           دکرم زوی دجلال لمسی یم

دادی دحاجي زبردست د " ذخیرة القراء " څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

جمله حمد [ دی ] له ازله           ستا دپاره لم یزله

چې حامد و ' ي ' حمد ویلی           پټ ښکاره دی تالیدلی

یابه پس له دې څوک وايي           په جمله ثنا دی ستايې

دحاجي زبردست " ذخیرة القراء " په تحفه هند پرس ډهلي کې دتــاجرانو لــه خوا په ۲۸ مخونو کې خپور شوی دی . (۴۲)

همدارنګه نصرالله کاکړ (۴۳) له کاکړو پښتنو څخه و او مسکین تخلص یې درلــود په دراني دولت کې یې دلښکر نویسي وظیفه درلوده . شعري استعداد یې درلــود او دایې آرزو وه چې دپښتنو له پاره په پښتو أثــارولیکي نومــوړی د " فرحــت الافغــان " پښتو منظوم اثر په اته څپیزه مثنوي په ۱۲۱۹ هـ ق کې دشیخ شرف الدین بخــاري د " نام حق " نومي اثر څخه په پښتو ژبــاړلی دی . دی پــه دې منظومــه ترجمــه کــې دټکي په ټکي ترجمې څخه ډډه وکــړه او ازادی ترجمــې نــه برسیره ځینــي نــور موضوعات یې هم پرې زیات کړ' او دکتاب نوم اړولو دده اثر ته نوی رنګ ورکــړ او له ترجمې څخه یې تالیف ته نږدې کړ دادی دنومــوړی منظــوم اثــر یعنــې " فرحــت الافغان " دسریزې څوبیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

او توفیق غواړم له خدایه           چې کتاب جوړ کړم نیک رایه

نام حق کتاب پښتو کړم           پوهیده دپښتنو کړم

هرچې و دنام حق           تول مې واړه په رونق

او زیاتي ترهغه یاره           ماویلی دي دلداره

په همدې ترتیب محمد صدیق طبیب د " طبب صدیق " (۴۴) یا دقلمي نســخې (۴۵) له مخې (طب شهاب ) چې یو طبي اثر دی او دیونــاني طــب لــه مخــې دټولــو ناروغیو ددرمل په برخه کې بحث کوي ، ددیارلسمې هجري پیړی پــه اوږدو کــې د

"طب صدیق " په نوم په اته څپیزه مثنوي منظوم کړی او دبیتونو شمیر یې دیونیم زر څخه زیات دی دامنظوم اثر په لاندې بیتونو شروع کیږي :

پس له حمده له صلوته دارنګ وایم زه حیاته

زه له طبه څو خبرې ، لذت ناکې ترشکرې

په ۱۲۳۴ هـ کې عبدالکریم کاکړ د " زین العلم " په نامه دعربي " عین العلم " څخه یو کتاب په خفیف بحر کې لیکلی چې دنظم دشکلي سکښت له پلوه په قافیوي لحاظ مثنوي دی (۴۶) دادی څو بیتونه یې دنمونې په توګه راوړم :

دښه خوي ګټه ده ډیره له ګڼلو تر اند تیره

هغه څوک چې اخلاقي وي دهغه نوم به باقي وي

که د چا اخلاق ښه نه وي دهغه به ژوند ښه نه وي

په همدې ترتیب محقق کندهاري علامه حبیب الله کاکړ (۴۷) ۱۲۱۳ هـ زوکړی چې علمي شهرت یې په افغانستان کې دلمر په شان څرګند و ، ډیر شاګردان یې روزلې دي نوموړي په فقه ، تفسیر ، حدیث ، اصول ، منطق ، هندسه ، حکمت ، الهیات ، تصوف او نورو علومو کې لوی لاس درلود. په عربي' اردو' پارسو او پښتو کې دډیرو تالیفونو خاوند و . نوموړی دخپل علمي لوړ مقام سره سره په ادب کې هم لوړ مقام درلود . او پخپله مورنی ژبه پښتو یې ډیر خواږه او روان اشعار ویلی دي . دده اشعارو یوازې یو منظوم کتاب چې " منهاج العابدین " نومیږي (۴۸) او په لنډ بحر کې یې دمثنوي په شکل په ۱۲۳۶ هـ کې یې منظوم کړی دی زموږ لاس ته راغلی دی . په نورو ژبو کې تقریباً ۲۹ اثرونه لري چې یې دنمونې تذکر دخپلې موضوع څخه دارتباط له مخې بې مناسب، بولم نو غواړم یوازې دده ۱۲۳۶ هـ منظوم کتاب چې په لنډ بحر کې یې دمثنوي په توګه نظم کړی څو بیتونه دبیلګې په توګه وړاندې کړم :

علم ډیر عظیم دولت دی چې ددوه کونو عزت دی

ښه عزیز نفیس ګوهر دی قیمتی صافي جوهر دی

دهر فضل وهنر کان دی دجهان په تن کې جان دی

قوت دزړه قوت دروح دی سرمایه دهر فتوح دی

همدارنګه ملا فرح الدین داعلیحضرت احمد شاه بابا دعصر له مشهورو علماوو او اولیاوو څخه دی یو کتاب یې د ( تعداد الکبایر ) ترعنوان لاندې ددیارلسمې هجري په اوله نیمایي کې دپښتو په لنډ بحر کې په اته څپیزه مثنوي لیکلی چې

(۲۰۰۰) بیتونه لري او داسلامي عقاید څخه بحث کوي (۴۹) دنوموړی منظوم کتاب خو بیتونه دنمونې په توګه راوړم :

بل حلال حلال ګڼل دی هر حرام حرام منل دی
شفقت پرمسلمان کړه له هر چاسره احسان کا
په ښادي دده ښادمن شه هم په غم دده غمجن شه

همدارنګه صاحب دین خټک دکوهاټ اوسیدونکی دپښتو ژبې حماسه سرا شاعرو، چې ددیارلسمې هجري پیړۍ په اواسطو کې یې ژوند کاوه . نوموړی شاعر له رنجیت سنګ سره دخټکو دهغه وخت دمشر سردار فیروز خان مبارزې په (فیروزنامه ) نومي جنګ نامه دپښتو په لنډ بحر کې دمثنوي په توګه نظم کړې او دپښتنو او سکهانو دتاوده جنګ پېښې یې پکې راوړې دي (۵۰) دادی دمنظومې (فیروزنامې ) څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

دسحر نسیمه باده دباغ سیمه کړه آباده
دسحر نسیمه زر کړه په چمن زما ګذر کړه
دسحر نسیمه وار دی که راځې دبهار دی

همدارنګه عبدالقادر مومند دپښتو هغه نوم ورکی شاعر دی چې دعبدالقادر خان خټک په شان یې دپښتو په لنډ بحر په اته څپیزې دیوسف زلیخا کیسه په پښتو نظم کړې ده (۵۱) عبدالقادر دځپل ځان معرفي او دکیسې دنظمولو نیته داسې ښیي :

وبه وایم داداستان نوم نسب به کړم عیان
زه نوسی دمنزري یم د" شامراد" لعلپوری یم
نوم مې دی عبدالقادر نه خټک یم نه وزیر
په مهمندو کې پیدایم بیا پیدا په کاروان ځایم
باجوړمې دی وطن بیا خاص شوی په مسکن
زر دوه سوه اویاکاله څلور نور پرې زما لاله
دحضرت تیر شو عیان چې ماوکړ دابیان

دعبدالقادر مومند یوسف زلیخا ( ۱۲۷۴ هـ ق تالیف ) دبیتونو شمیر اتو زرو ته رسیږي دادی څو بیته دبیلګې په توګه راوړم :

چې پوره شوه څوارلس کاله دیوسف بلا مثاله
خوی خصلت یې په بل شان شو هم یې حسن دو چندان شو

په همدې ترتیب پوهاند رښتین درسول داد په نامه یو شاعر دپښتانه شعراء په دوهم ټوک (۵۸٦ مخ ) کې معرفي کوي او دده دپېژندنې واسطه یو کوچنی قلمی کتاب ښيې (۵۲) داکتاب " دارالبیان " نومیږي چې دپښتو په لنډ بحر کې په اته څپیزې مثنوي نظم شوی دی . دغه کتاب (٦٠) مخه او تقریباً ۷۴۰ بیته لري . دیني او مذهبي مسایل پکې راغلي دي دکتاب په پای کې مصنف لیکي : چې داکتاب دنورو معتبرو کتابونو لکه شرح عین العلم – مدارک تحفه الاحرار - دقایق الاخبار او نورو څخه ماخوذ دی .

" دارالبیان " په ۱۲۸۱ هـ ق کې تصنیف شوی دی پخپله شاعر دکتاب په اخر کې وایي :

ګوره داچې شو تصنیف　　　برابر شو په ترتیب
له هجرته درسول　　　وي دې درود په ده مقبول
وو زر دوه سوه کلونه　　　یواتیا نور وو میمونه

ولې دقلمي کتاب په آخر کې ۱۲۹۱ سنه لیکل شوې ده . دغه لیکنه دوه احتماله منځ ته راوړي یا داچې په لیکلو کې به سهوه شوې وي او یا به یې داد تسوید سنه وي او مخکنی به یې دتصنیف وي .

رسول داد په قام خروټی و . او دپکتیا په ګومل کې اوسیده . اوس درسول داد د د رالبیان دپیل څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

له اوله بسم الله ده　　　ورپسې درب ثناده
پس درود په پیغمبر ده　　　چې ترکل عالم بهتر ده
ده له رویه یې پیداکړ　　　داجهان یې هویداکړ

دپای بیتونه یې دادی چې دوه بیتونه یې دلته راوړم :

شکر ختم دکتاب شو　　　" رسول داد" زړګی کباب شو
چې هی هی عمر مې ډیر شو　　　بیهوده راځخه تیر شو

مولوي عبدالمجید په ۱۲۸٦ هـ ق کال کې دپښتو سیرت نبوي (ص) په لنډ بحر کې په اته څپیزې مثنوي نظم کړی دی . نوموړی ډیر مستند او تاریخي روایات راټول کړي اوپه ساده ژبه یې نظم کړي دي . دده پښتو سیرت نبوي په تاریخي اثارو کې یو مهم اثر دی چې دنبي (ص) ټول وقایع یې مستند کال په کال راوړي دي . دده شعري ژبه خوږه او روانه ده اوپه لومړی ډله شاعرانو کې راځي . (۵۳)

دادی دده دمنظوم سیرت نبوي (ص) څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

روایت دی چې سرور    غوښت روان شي دی پیشتر
کړه غاتره یې هیبت    ودښمن ته په سرعت
نور عباس او ابو سفیان    نه پریښو چې شي روان

همدارنګه دوست محمد خټک داعلیحضرت امیر شیر علیخان په عصر کې د "بحرالعلوم" له نظمولو څخه فارغ شوی او په ۱۲۹۲ هـ ق کال یې د " اخلاق احمدي " ترعنوان لاندې بل منظوم اثر دپښتو په لنډ بحر کې په اته څپیزې مثنوي نظم کړی دی.

دی یو متصوف او عالم سړی و. دده " بحر العلوم " دډیرو عربي کتابونو خلاصه او دپندونو او حکمتونو، ایتونو - احادیثو او نورو اخلاقي مضامینو مجموعه ده. دغه کتاب ۱۱۵۹ مخونه او (۲۰۰۸۰) بیتونه لري په دولس بابونو ویشل شوی چې هر باب یې مستقل کتاب دی. همدارنګه نوموړی د " اخلاق احمدي " په نوم بل کتاب له عربي طریقهء محمدیه څخه دخپل پلار حاجي محمد اکرم په امر په پښتو اړولی چې دهر قسم اخلاقي امراضو له مجربو علاجونو او نصیحتونو څخه ډک دی. نوموړی کتاب ۷۷۲ مخه او (۱۱۰۰۰) بیتونه لري (۵۴) دادی دده ددواړو منظومو اثارو څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم:

الف: دقلمي نسخې له خاتمې څخه:

داکتاب بحرالعلوم دی    پکې هرشي ښه معلوم دی
پکې ډیر نصیحتونه    له هر قسمه حکمتونه

ب: د " اخلاق احمدي " څخه:

ابراهیم بن ادهم و    دی وخدای ته مکرم و
ده دایه په اجرت یاره    وه اخیستی برخورداره
وعمان وته دلبره    دی روان شو بهره وره

په همدې ډول ملافیض محمد (۵۵) اخوند زاده چې عالم او روحاني شخصیت و. د ۱۲۵۰ ه په شاوخوا کې دلوګر په سیمې کې زیږیدلی او دمسیې اخوندزاده په نامه شهرت لري د " روضة المجاهدین " په نامه یو کتاب دمثنوي په بڼه په خفیف بحر کې په ۱۲۹۳ ه لیکلی دی چې څو بیتونه یې دبیلګې په توګه راوړم:

په نامه دلوی عزیز    ښه قادر دی په هر څیز
دی پیدا کاندی انسان    بیایې پوه که په بیان
شي عالم په حقایقو    اظهار که ددقایقو

احمد په قام خلیل او دسپینې ډیرۍ اوسیدونکی دی . بشپړ نوم یې ګل احمد دی چې په احمد سره مشهورو پلار یې عبدالکریم یا کریم نومیده په ختـه خلیل موسی خیل او دسفید ډیرۍ داخونزاد ګانو کورنۍ ته منسوب و . احمد کله په تیراهي او کله په پچکی اوسیدلی او دامامت وظیفه یې درلوده . نوموړی په احمد خلیل، احمد تیراهي او احمد دپچکی مشهور دی . دده پورتنیو نومونو دادب په ډګر کې ځیني اشتباهات رامنځ ته کړي ي . ځینو له همدغه یوه سړي ځخه دوه او ځینو بیادرې بیل ـ بیل سړي جوړ کړي دي . ولې حقیقت دادی چې دغه احمد کله احمد خلیل - کله بیا احمد تیراهي و کله احمد دپچکی په نامه یادشوی دی .

نوموړی په پښتو ادب کې ډیر منظوم آثار لري چې دنظم دشکلي سکښت له مخې په لنډ بحر په مثنوي ویل شوی دی .

احمد کله دلرې پښتونخوا په " تیراهي " نومي کلي کې په ۱۲۹۳ هـ ق کې اوسیده او په همدې ځای کې په یوه مسجد کې امامت کاوه خپله دی دې نکتې ته داسې اشاره کوي : (۵٦)

تیراهي کې مې مقام دی خبردار پرې خاص وعام دی
په مسجد کې امامت کړم خپل مولاته عبادت کړم
سنه درې نوي یو زر دوه سوه نور کړه برابر
څلورمه دشعبان وه په قدرت دپاک سبحان وه
توقف کړه اې احمده وړاندې تالره دمه ده

په همدې ځای او کال نوموړي دوې منظومې د " خواب نامه " او " فال نامه " په نومونو دپښتو په خفیف بحر کې دمثنوي په شکل نظم کړې چې په یوه پښتې (وقایه ) کې خپرې شوې دي . دنوموړی دخواب نامې او فال نامې بیلګې په جلا توګه وړاندې کوم :

دخواب نامې بیلګه : داحمد خواب نامه په لاندنی بیتونو شروع کیږي (۵۷)

پس له حمده له صلوته راشه غوږ ونیسه ماته
چې باعث په بنده راشي نوریې خدای ته التجاه شي

دفال نامې بیلګه په ندې بیتونو شروع کیږي :

پس له دارنګه کلامه وایم تاوته نیک نامه
اوس مې دارنګه فکرت دی فالنامې وته حاجت دی

احمد " انيس الواعظين" : د( ۱۳۰۵ ھ ق تـاليف) منظـوم كتـاب او د جمجمـې كيسه په پجكی كې منظوم كړې ، چې دنظم دقافيوي رعايت له مخې دمثنوي پـه بنه په لنډ بحر كې ويل شوی دی . داحمد " انيس الواعظين " په پښتو ژبه په پيـښور كې دقصه خواني بازار تاجر ګهرک سنګ له خواپه ۳۵٦ مخونو كې په مطبعـه نـامې پريس لاهور چاپ شوی‌دی چې دديني وعظونو څخه حكايت كوي.(۵۸)

د " جمجمې كيسه " دګهرک سنګ له خواپه ۱۲ مخونو كې په ۱۳۵۳ ھ ق كې پـه سرحد ستيم پريس كې خپره شوې ده . (۵۹)

دادی په لاندې ډول دهر يوه منظوم اثر دپـيـل څو بيتونـه دبيلګې پـه تـوګه راوړم:

د" انيس الواعظين " بيلګه :

چې سحر بلبل آواز كا دهجران له بابه سازكا
فلک څكه سرګردان شو پيدا غم كې داجهان شو

د" جمجمې كيسه " بيلګه :

دالله په بنه وحدت نشته شک په هيڅ جهت
له هرنفسه خبردار دی خود عليم خبير ستار دی

همدارنګه عنوان الدين كاكاخيل (٦٠) په ۱۲۹۹ ھ ق كال دسوات جغرافيـايي حالات د پښتو په لنډ بحر كې په اته څپيزې مثنوي بيان كـړي دي چـې څو بيتونـه يې دبيلګې په توګه راوړم :

راشه واوره دابيان چې ټول سوات شي درعيان
سرا سرپرې ګرځيدلی ماپخپله دی ليدلی
ديوسف دی دا اولاد اكوزي باندې شي ياد

دپښتو ادب په معاصره دوره كې بل پښتو ن شاعر ملانعمت الله دپيـښور دنـوښار اوسيدوكی‌دی . دی په ۱۲۷۵ ھ ق كال كـې زيـږيدلی دی . نومـوړی ددياړلسمې هجري پيړۍ د اواخرو اودخوارلسمې هجري پيړۍ داولې نيمايي دشاعرانو څخـه دی . ډير كتابونه يې په پښتو نظم ويلی دي . ملا نعمت الله په داسـتاني او رزمـي ادب كې داستادی حق لري او دپښتو ادب فردوسي يې بللی شو ، ولـې دفردوسـي سره دسلطان محمود غزنوي تشويق و او پـه اشعارو كـې يـې دربـاري خصوصيـت موجود و . فردوسي به مضامين دغزنوي دولت په بركت دشـاهنامې پـه قـالب كـې اچول . كه چيرې دملانعمت الله سره دفردوسي په شان دوخت ددولت تشـويق او

مرسته وای بې شکه به دی تر فردوسي په دې فن کې ډېر لوړ تللــی وای او داسـې مضمون به نه وای پاتې چې ده به په شعري قالب کې نه وی اچولی .

دملانعمت الله دکیسو په نظمولو کې کړنلاره داده چې دی دهــرې منظومـې په پیل کې دوه یادرې بیتونه دتشبیب په ډول په داسې ساحرانه او استادانه الفـاظو او کلماتو راوړي چې پــه لوسـتونکي او اوریدونکـي کـې دلوسـتلو او اوریدلـو ذوق پیداکوي. دشعر ژبه یې ډېر خوږه او روانه ده په ترجمه کې ډېر مهارت لري ،دی په دې فن کې دومره ماهر دی چې دده په اثر دا ګومان نه کیږي چې دادې دبلـې ژبې څخه ترجمه شوي وي . (٦١)

دملا نعمت الله دمنظومو آثارو څخه چې دمثنوي په بڼه یي دپښتو په لنــډ بحر کې ویلی دی یو هم د " شیرینی اوفرهاد" دمینې او محبت منظوم داستان دی چــې په ۱۳۰۴ ﻫ ق کال کې یې له نظمولو څخه فارغ شــوی دی . دغــه منظـوم داسـتان دحاجي فضل احد له خواپه سرحد الکتریک پیښور کــې پــه ۲۴ مخونـو کــې چـاپ شوی دی . (٦٢)

ملانعمت الله دداستان دنظمولو نیتې ته داسې اشاره کوي :

خوږ زړګي مې له غم خلاص شو      چې کتاب دفرهاد نام شو

شپاړسم رمضان و      په ترتیب اوپه ښه شان و

دیارلس سوه څلور دپاسه      دغه سن دهجرناسنه (٦٣)

دادی دملانعمت الله د " شیریني او فرهاد " دمینې داستان دپیــل څو بیتونـه دبیلګې په توګه راوړم :

راویان درواياتو      شته طوطیان دحکایاتو

هسې رنګ کوي اخبار      چې په روم کې وه . یوښار

پخپل کسب کې هسې طاق وه      چې مشهور په ټول افاق وه .

دملا نعمت الله بل منظوم اثر " مجموعه کسب نامه " نومیږي . پــه دې اثــر کــې دکلالانو ،نجارانو - لوهارانو دوبیــانو او نایـانو دکسـبونو پــه بـاب منظـوم او منثـور معلومات راغونډ کړی شوي دي . چــاپـي کتـاب ټول ۲۴ مخونـه لـري چـې دمیا عبدالرحمن او عبدالخالق لــه خـوا دلاهـور پــه محمدیــه پریـس کــې چـاپ شـوي دي.(٦٤)

دکلالانو کسب نامه : دکتاب د ۲ مــخ څخــه شـروع او تــر ۹ مخــه پــورې دوام کوي. دغه کسب نامه دپښتو په لنډ بحر کې په اته څپیزه مثنوي منظـوم شـوې ده . دپیل بیتونه یې دادي :

حمد ثنا دپاک سبحان وایم زه په هر زمان
چې رحمان دی هم رحیم دی په هر کار علیم فهیم دی

د " لوهارانو کسب نامه " په نثر لیکل شوې ده . دکتاب له ۹ مخ څخه شروع کیږي او تر ۱۲ مخه پورې دوام مومي .

د " نجارانو کسب نامه " د ۱۲ مخ نه شروع کیږي او تر ۲۱ مخه پورې ادامه مومي . دغه منظومه کسب نامه په دولس هجایي مثنوي منظوم شوې ده چې په خپل ځای به پرې بحث وشي .

د " دوبیانو کسب نامه " : دپښتو په لنډ بحر کې په اته څپیزې مثنوي منظوم شوې ده . د کتاب د ۲۱ مخ څخه شروع کیږي او تر ۲۳ مخه پورې ادامه مومي . دکتاب په ۲۳-۲۴ مخونو کې پښتو نثر او عربي متن لیدل کیږي . ددوبیانو کسب نامه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

اول ثنا به درب وایم څو ژوندی په دادنیا یم
دی لایق ټول دثنا دی هم خالق دټول اشیا دی

په همدې ترتیب میا عبدالحلیم ګل (۶۵) په قوم کاکا خیل خټک دی چې ددیارلسمې هجري پیړۍ په وروستنی نیمایي کې زیږیدلی او دڅوارلسمې هجري په څلورمه لسیزه کې د ۱۳۳۴ هـ ق په حدودو کې وفات شوی دی . نوموړی زیات وخت سیاحت کړی ، هند او پښتونخواته یې سفرونه کړي او په دې ترڅ کې یې کتابونه ژباړلی او تالیف کړي دي دده داثارو څخه یوازې دوه اثره په لاس راغلي چې یو یې له اردو څخه څلویښت حدیثونه په دولس هجایي مثنوي کې ترجمه کړي پخپل مورد کې به خبرې پرې وکړو . بل اثر یې له عربي څخه منیةّ المصلی په اته څپیزه مثنوي کې دپښتو په لنډ بحر کې په ۱۳۱۶ هـ ق په پښتو ژباړلی او په همدغه کال یې دډیلي په هند وپریس کې د کشن لال په اهتمام د مصنف په لګښت خپور شوی چې ۱۲۴ مخونه لري او دبیتونو شمیر یې له پنځو زرو څخه اوړي . نوموړی شاعر په دغه ژباړلي اثر د (رخت محکم ) نوم ایښي دی . (۶۶) دادی دمیا عبدالحلیم ګل د ( رخت محکم ) منظوم اثر دپیل څو بیتونه دنمونې په توګه راوړم:

ثنا هغه خدای ته ښایي چې یې کل مخلوقات ستایي
تسبیح خوان یې دی شپې ورځې زیات به څه ورپسې خوځې
دثنا میدان فراخ دی مکتفی په دې ګستاخ دی

په همدې ترتیب سید محسن دسید عبدالرحیم زوی (٦٧) په ۱۳۲۳ ه ق کال د " مزارات " تر عنوان لاندې مستقل اثر په (۱۱۰۰) بیتونو کې دپښتو په لنډ بحر اته څپیزه مثنوي منظوم کړی دی . په دې اثر کې دکندهار د ۱۵ تنو مشهورو سیدانو، لکه بابا صاحب و شاه مسعود او نورو شرح حال ،خوارق او دهدیرو ذکر راغلی دی.(٦٨) دادی د " مزارات " څوبیتونه دبیلګې پهٔ توګه راوړم :

ای زما یاره نفیسه په یارانو کې انیسه
چې سرغنډ داولیا دی هم حقید د مرتضی دی
دبابا صاحب لمسی دی په سکلیچه یې نغری دی

همدارنګه مولوي صالح محمد کندهاري دفیض محمد زوی په خټه هوتک چې په ۱۲٦٦ ه ش کال په کندهار کې زیږیدلی او په ۱۳۳۹ هـ ش کال په کابل کې مړ اوپه کندهار کې خاورو ته سپارل شوی دی . نوموړی ترزده کړې وروسته دحبیبې په لیسه کې دپښتو ښوونکی په حیث وظیفه اجراکوله. پښتو درسي کتابونه یې تالیف کړل ، دی په پښتو ادب کې لیکوال ، شاعر او عالم سړی تیر شوی دی . ده پښتو ادب ته دقدر وړ خدمتونه کړي دي په سراج الاخبار ، طلوع افغان او دپښتو انجمن په دوره کې یې ډیرې قلمي مرستې کړې دي .

ده دپښتو په لنډ بحر کې د " مثنوي " ترعنوان لاندې یوه منظومه په پښتو ویلې ده . دغه منظومه دافغانستان اکادیمي دپښتو دانکشاف او تقویي ریاست له خوا دغلام محمد تره کی په اهتمام په ۱۳۵۰ ه ش کې په ۱۰۲ مخونو کې چاپ شوې ده . دمولوی صالح محمد کندهاري منظومه دوې برخې لري یوه برخه یې دمولانا جلالدین بلخي له مثنوي څخه ځینې مطالب په آزاد ډول په پښتو نظم اړولي دي. بله برخه یې پخپله مولوي صالح محمد خان کندهاري د "پاشلي وینا" په نامه نومولې ده .

دمنظومې دپیل دمخه په اتو مخونو کې لوی استاد پوهاند حبیبي د " مولوي صالح محمد کندهاري کورنۍ او روزنه " تر عنوان لاندې یوه سریزه لیکلې ده . همدارنګه دمنظومې دپیل نه دمخه په اول مخ کې د " پښتو مثنوي " تر عنوان لاندې دمولوي صالح محمد خان منثوره لیکنه ده بیا په دوهم مخ کې منظومه پیل کیږي دمنظومې لومړۍ برخې هم اته هجایي مثنوي دي .

یوازې په ۵٦ مخ کې یوه قطعه راغلې ده . دمنظومې ددوهمې برخې قول دقافیوی رعایت له مخې ترکیب بند دی اود چاپي کتاب له (۸۲) مخ څخه شروع

او تر (۱۰۰) مخه پورې ادامه کوي . له (۱۰۰) مخ څخه تر (۱۰۲) مخ پورې د "نتيجه" تر عنوان لاندې بيا دنظم فورم اته هجايي مثنوي دی .

دی پخپله پاشلي وينا کې خلکو ته دټولنې دپرمخ تګ يو اصولي فکر ورکوي . دموضوع له پلوه هم اجتماعي او حياتي ذخيره لري يعنې هغه څه وايي چې دټولنيزو ربړونو په حل کې پکارېږي . مولوي صالح محمد خان کندهاري ديني مفکورې ، اخلاقي او ټولنيزي ښيګڼې په روانه ژبه بيانوي . (٦٩)

دادی دده دمثنوي دپيل څو بيتونه د بېلګې په توګه راوړم :

زما عرض دی په پښتو      ای ښاغلو پښتنو

ډير مې خوښ دی مثنوي      مثنوي دمولوی

مثنوي څه ښه کتاب دی      چې ګويا دعشق په باب دی

مولانا خو لوړ جناب دی      مثنوي يې لوی درياب دی

## ماخذونه :

(۱) - په عروضي تقطيع کې ( ں ) علامه دلنډې هجا او (ـ) دفشار لرونکي اوږدې هجا دښودلو لپاره او عمودي خط ( ا ) درکن دبيل والي نخښه او دوه عمودي موازي خطونه يعنې ( اا ) دنيم بيتي دتماښدو علامه ټاکل شوې ده.

(۲) - تمر دتيمور زړه املاده چې په توركي کې اوسپنې ته وايي مطلب تيمورلنګ دی . وګ حبيبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء لومړی ټوک، کابل ، ۱۳۲۰ ش کال ، ٦٦ مخ پايليک .

(۳) - زموږ کلمه دې په يوه هجا تلفظ شي .

(۴) - حبيبي ، پوهاند عبدالحي ، دپښتو دادبياتو تاريخ ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۴۲ ش کلل ، ۱۷۱-۱۷٦ مخونه .

(۵) - هوتک ، محمد ، پټه خزانه ، کابل پوهنتون ، ۱۳۵٦ ش کال ، ۱۴ مخ . همدارنګه وګ : حبيبي ، پوهاند عبدالحی ، دپښتو ادبياتو تاريخ ، دوم ټوک ، کابل ۱۳۴۲ ش کال ، ۱۸۱-۱۸۲ مخونه .

۱۳۴۲ ش کال ، ۱۸۳-۱۸٦ مخ پورې .

(۷) - وګړ حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، دپښتو ادبیاتو تاریخ ، دوهم ټوک ، کابل ۱۳۴۲ ش کال او هم وګړ هوتک ، پټه خزانه ، کابل ۱۳٥٦ ش کال چاپ ، ۱۱۰-۱۱۱ مخونه .

(۸) - وګړ هوتک ، محمد ، پټه خزانه ، کابل ، ۱۳٥٦ ش کال ، ۴۳-۴۴ مخونه . او هم دزیات تفصیل دپاره وګړ حبیبي پوهاند عبدالحی ، دپښتو ادبیاتو تاریخ ، دوهم ټوک ، کابل ۱۳۴۲ ش کال ، ۱۹۰-۱۹۴ مخونه .

(۹) - حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ ش کال ، ۷۳-۷٦ مخونه .

(۱۰) - تیر اثر ، ۱۳۲-۱۳۴ مخونه .

(۱۱) - ختک خوشحال خان ، طب نامه ، کابل ۱۳۴٥ ش کال ، پوهاند رښتین په سمونه او کتنه .

(۱۲) - ختک ، خوشحال خان ، فضل نامه ، پیښور ، ۱۳٥۲ ش کال ، دمحمد عبدالشکور په اهتمام .

(۱۳) - ختک ، خوشحال خان ، اخلاق نامه ، ( ناچاپ ) ده او ښاغلی حبیب الله رفیع دچاپ دپاره تیار کړې ده .

(۱۴)- ختک ، خوشحال خان ، فراق نامه ، ( ناچاپ ) ده اوښاغلی زلمي هیوادمل دچاپ لپاره آماده کړې ده .

(۱٥)- حبیبي پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ ش کال ، ۱۷۴ مخ .

(۱٦) - پورتنی اثر ، ۱۸٦-۱۸۷ مخونه .

(۱۷) - ختک صدرخان ، معجزه ، ( قلمی نسخه ) دغه نسخه اوس درفیع په خانګړی کتابخانه کې خوندي ده .

(۱۸) - حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ ش کال ، ۲۱۲-۲۱٥ مخونه .

(۱۹) - خدمتګار ، خیرندوی عبدالله ، پښتانه شعراء ، څلورم ټوک ، کابل ، ۱۳٥۷ ش کال ، ۹۳-۹۴ مخونه .

(۲۰) - هوتک ، محمد ، پټه خزانه ، کابل ، ۱۳٥٦ ش کال ، ۷۰-۷۱ مخونه .

(۲۱) - ددې موضوع لپاره وګ : هوتک ، محمد ، پټه خزانه ، څلورم چاپ ، کابل ۱۳۵٦ ش کال د ۷۴ مخ پاپلیک .
(۲۲) - حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، کابل ۱۳۲۰ ش کال ، ۳۱۸-۳۲۰ مخونه .
(۲۳) - رشاد ، پوهاند عبدالشکور ، ورکه خزانه ، ورمه ، ۱۳۳۸ ش کال ، پنځمه ، شپږمه ګڼه .
(۲۴)- رفیع حبیب الله ، ادبي ستوری ، لومړی ټوک ، پښتو ټولنه ۱۳۵۳ ش کال، ۸۸مخه څخه ۹۲ مخ پورې .
(۲۵)- جلال ابادي ، میافقیرالله ، فواید میافقیرالله ، کابل ، ۱۳۵۹ ش کال ، دپوهاند رشاد سریزه .
(۲٦) - جلال ابادي ، میافقیرالله ، اسماء الحسنی میافقیرالله ، کابل ۱۳۵۹ ش کال دپوهاند رشاد سریزه .
(۲۷) - پښتو ټولنه ، پښتانه شعراء ، دریم ټوک ، کابل ، ۱۳۴۲ ش کال ، ۸۲۵ مخ تر ۸۲٦ مخ پورې .
(۲۸) - رفیع ، حبیب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ ش کال ، ۵۱۸ مخ ، او ۸٦۰ پرله پسې نمبر .
(۲۹) - وګ:ددوهم اثر اخځ ، ۷۵۰ مخ ، ۱۲۴۸ ، پرله پسې نمبر .
(۳۰) - د "جنت الفردوس " منظوم کتاب ۸۴ مخه او ۳۸ بابه لري ، چاپي نسخه یې دافغانستان دعلومو اکاډمۍ په کتابخانه کې موجوده ده . په پښتانه شعراء دریم ټوک کې یوازې دکتاب نوم پرته دبیلګې راوړل شوي دي .
(۳۱) - اثر ، عبدالحلیم ، تیر هیرشاعران ، پیښور ۱۹٦۳ م کال ، ۵۲-۵۸ مخونه .
(۳۲) - رشاد ، پوهاند عبدالشکور ، ورمه ، ۱۳۴۰ ش کال ، شپږمه ګڼه "دشاهنامې ناظم او شاهنامه " لنډیز او هم ددې مطلب دپاره وګورئ : خدمتګار ، خیږندوی عبدالله پښتانه شعراء ، څلورم ټوک ، ۱۳۵۷ ش کال ۹٦۹ مخ څخه تر ۹۷۴ مخ پورې .
(۳۳) - شمس الدین دشیخ رحمکار چې په کاکا صاحب شهرت لري د کورنۍ غړی دی چې دنسب سلسله یې شیخ رحمکار ته رسیږي دی په مناقب شیخ رحمکار کې خپل ځان داسې معرفي کوي :

زما نوم دی شمس الدین          که مې خدای که نمر ددین

یم فرزند دشیخ زبیر | رب یې کړه په مخکې خیر
چې یې نوم قیاس الدین دی | دی ولد یې په یقین دی
ددېلار چې نمر ددین دی | په تحقیق ضیاء الدین دی
مشر زوی دشیخ رحمکار دی | منتهی دکردګار دی

همدارنګه دزیاتو معلوماتو لپاره وګوریُ :

رفیع ، حبیب الله ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، ۱۳۵۹ ش کال ، ۷۸ مخ څخه تر ۸۷ مخ پورې .

(۳۴)- حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، ۱۳۲۰ ش کال چاپ ، ۲۸۵-۲۸۶ مخونه .

(۳۵)- رفیع حبیب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، ۱۳۵۹ ش کال ، د ۸۸مخ څخه تر ۹۰ مخ پورې .

(۳۶) - رفیع ، حبیب الله ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۹ ش کال ، ۹۱-۹۲ مخونه .

(۳۷) - وګ : دپورتنۍ اخځ ۹۵-۹۷ مخونه .

(۳۸) - په دې بیت کې شاعر دقافیي رعایت نه دی ساتلی .

(۳۹) - رفیع حبیب الله ادبي ستوری ، دوهم ټ،ک ، ۱۳۵۹ ش کال ، ۹۸ مخ څخه تر ۱۰۱ مخ پورې .

(۴۰)- رښتین پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، ۱۳۲۱ ش کال ، د ۴۱۴ مخ نه تر ۴۱۸ مخ پورې .

(۴۱)- رفیع حبیب الله ، ادبي ستوری ، لومړی ټوک ، کابل ۱۳۵۳ ش کال ، ۱۰۱تر ۱۰۷ مخ پورې .

(۴۲)- رفیع ، حبیب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، ۱۳۵٦ ش کال چاپ ، ۵۸۷-۵۸۸ مخونه .

(۴۳)- رفیع حبیب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، ۱۳۵۹ ش کال ، د ۱۳۳ مخ څخه تر ۱۳۸ مخ پورې

(۴۴)- رفیع ، حبیب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، ۱۳۵۹ ش کال د ۱۴۲ مخ څخه تر ۱۴۵ مخ پورې .

(۴۵)- وګ: دپورتنی اخځ د ۱۴۳ مخ پایلیک .

(۴٦)- حبیبي ،پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، ۱۳۲۰ش کال چاپ ، د ۳۵۹ مخ څخه تر ۳٦۰ مخ پورې .

(۴۷)- رښتین ، پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، ۱۳۲۱ ش کال ، ۴۷۸ مخ څخه تر ۴۸۷ مخه پورې .

(۴۸)- رفیع ، حبیب الله پښتو پانګه ، دوهم ټوک کابل ، ۱۳۵٦ ش کال ، ۷٦۷-۷٦۸ مخونه ، ۱۲۷۲ پرله پسې نمبر .

(۴۹)- حبیبي پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، ۱۳۲۰ ش کال چاپ ، د ۳۸۰مخ څخه تر ۳۸۲ مخه پورې .

(۵۰)- رفیع ، حبیب الله ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، ۱۳۵۹ ش کال ، د ۱٦۵ مخ څه تر ۱۷۰ مخ پورې .

(۵۱)- رفیع حبیب الله ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، ۱۳۵۹ ش کال ، د ۱۷۳ څخه تر ۱۸۱ مخ پورې .

(۵۲)- رښتین ، پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۲۱ ش کال چاپ ، د ۵۷٦ مخ پایلیک .

(۵۳)- رښتین ، پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۲۱ ش کال چاپ ، د ۴۸۷ مخ څخه تر ۴۸۸ مخ پورې .

(۵۴)- پورتنی اخځ : د ۴۹۱ مخ څخه تر ۴۹٦ مخ پورې .

(۵۵)- پښتانه شعراء ، دریم ټوک ، پښتو ټولنه ، ۱۳۴۲ ش کال چاپ ، د ۷۰۹څخه تر ۷۱۱ مخ پورې .

(۵٦)- رفیع حبیب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ،کابل ، ۱۳۵۹ ش کال چاپ ، د ۳۷۵ څخه تر ۳۷۷ مخ پورې .

(۵۷)- رشاد ، پوهاند عبدالشکور ، زیری جریده ، ۱۳۵٦ ش کال ،۲۷ ګڼه دتلی ٦ نیټه ، احمد اخوند خیل او احمد دپجګی یو سړی دی .

(۵۸)- رفیع حبیب الله پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ ش کال چاپ، ۳۲۸ مخ ، ۵۵۲ پرله پسې نمبر .

(۵۹)- دپورتنی اخځ ، ۴۱۰ مخ ، ۴۷۷ پرله پسې نمبر .

(٦۰) - رښتین ،پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، ۱۳۲۱ ش کال چاپ ، ٦۰٦ مخ .

(٦۱) - رښتین ، پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء دوهم ټوک کابل ۱۳۲۱- ش کال ، ٦۲۱-٦۲۴ مخونه ، همدارنګه دغه موضوع په تفصیل وګورئ : جمهورې پلوشه ، دوه میاشتنۍ خپرونه ، دوهمه ګڼه ، کابل ، دغبرګولی او چنګابښ میاشت ، ۱۳۵٦ ش کال ، د ۲۱ مخ څخه تر ۳۱ مخ پورې .

(۶۲) - رفیع ، حبیب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک پښتو ټولنه ، کابل ، ۱۳۵۶ ش کال ، ۶۴۹ مخ ، او ۱۰۷۴ ګڼه .

(۶۳) - وګ: دشیرینی او فرهاد چاپي نسخه ، ۲۲ مخ .

(۶۴)- رفیع حبیب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۶ ش کال ، ۷۴۰ مخ ، او ۱۲۲۹ پرله پسې نمبر .

(۶۵)- رفیع حبیب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۹ ش کال ، د ۲۵۸ څخه تر ۲۶۲ مخ پورې .

(۶۶) - رفیع ، حبیب الله ، پښتوپانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۶ ش کال ، ۵۹۴ مخ ، ۹۸۵ پرله پسې نمبر .

(۶۷) - پښتو ټولنه ، پښتانه شعراء ، دریم ټوک ، ۱۳۴۲ش کال چاپ، ۸۲۳ مخ.

(۶۸) - کندهاري ، مولوی صالح محمد، پښتو مثنوي ،کابل ، ۱۳۵۰ کال ، الف -ح دپوهاند حبیبي سریزه .

# پښتو لس څپیزه مثنوي او دهغې تاریخي سیر

په پښتو ادب کې لس څپیزه مثنوي په ددو فورمونو لیدل کیږي په لومړنی فورم کې فشار په څلورمه او نهمه هجا راځي. ددې راز مثنوي دهربیت نیم بیتی لس څپه يي یا نه څپه يي دی. داولني فورم لومړنی بیلګه دشیخ اسماعیل نیکه په هغو منظومو نارو کې ګورو چې دپنځمې هجري پیړۍ په اوایلو کې يي دخربښبون دنګ په وخت کې ویلی دی.(۱)

دغه منظومې نارې دلومړنی فورم سره سم په څلورمه او نهمه هجا فشار لري. ددې منظومو نارو عروضي بڼه او درکنونو تقطیع په لاندې ډول ده.

لس څپیزه مثنوي:

ں ں ں - ں ں ں ں ں - ں

نـه څپـیزه:

ں ں ں -. ں ں ں ں ں -

دادی دشیخ اسماعیل نیکه منظومې نارې چې دلومړنـی فـورم سـره سـمون او مطابقت لري او دنظم دشکلي سکښت لـه پلـوه لـس څپیزه مثـنوي ده. درکنونـو عروضي تقطیع يې دفاضل استاد پوهاند رشاد په لارښوونه په لاندې ډول راوړم:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| که یون دی یون | دی | مخکی بیلتون | دی | |
| له کسی غره | څخه (۲) | ځی خربښبون | دی | |
| که وروره ورو | ره | خربښبون ورو | ره | |
| ته چې بیلتون | کړې | زما (۳) ویرته ګو | ره | |
| چې ځې مرغې | له | توري کرغې | له | |
| همزولی پا | ته | ځي څه برغې | له | |
| دخدای دپا | ره | خربښبون یا | ره | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| چې هیرمونکـــــــــړي | | زمونږ (٤) کهول وا | ړه |
| زړه مې رپـــــــــیږي | | یارمې بیلیـــــــــــړي | |
| بیلتون یې اور | دی | ځان په سوځـــــــیږي | |

همدارنګه په همدې لومړني فورم کې د (لیلی مجنون) کیسه حافظ نظام دبره مهمندو د (لکړو) اوسیدونکي په پښتو اړولې ده.

حافظ نظام دغه قصه په ۱۶۱۳ بیتونو کې په لس هجایی مثنوي پښتو نظم کړې ده. (۵)

دحافظ نظام د (لیلی مجنون) کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي:

وایي ویونکی ددې قصې     چې تل یې ښکاره وه دښه هوسې
چې دعربو دملک یو مرد وه     خجسته نام وه په عقل فرد وه
متاع یې ډیره له هره بابه     څوک په حساب وه څوک بې حسابه
هم کجاوې وې هم عمارې     لایق دتخت وه دتاج درې
په عربانو کې خرګند دی وه     په هر مجلس کې په ګفتګوی وه

دلس هجایي مثنوي دوهم فورم کې فشار په دوهمه، شپږمه او لسمه هجایي باندې راځي. ددې فورم عروضي بڼه دسیلابوتونیک سیستم له مخې درکنونو دعروضی تقطیع سره سم په لاندې ډول ده:

دلس هجایي مثنوي دوهم فورم:

ᴗ - ᴗ     ᴗ ᴗ - ᴗ     ᴗ ᴗ -

ددې فورم بیلګه یوازې دمراد علي صاحب زاده (٦) په اشعارو کې د "تفسیر یسیر" لومړی ټوک په (۵۵ او ۵٦) مخونو کې دمثنوي لیکنې ترڅنګه لیدل شوې ده چې دقافیوي رعایت له مخې لس څپیزه مثنوي ده. (۷)

دادی دمحترم استاد پوهاند رشاد په لارښوونه دخو بیتونو درکنونو عروضي تقطیع په لاندې ډول راوړم:

| | | |
|---|---|---|
| قبله د | تن پرورو | خوب خوراک |
| قبله د | عاقلانو | فکر (۸) ادراک |
| قبله د | دنیا دارو | سیم وزر |
| قبله د | بادشاهانو | تاج افسر |
| قبله د | غافلانو | جاه ومال |
| قبله د | ذاکرانو | ذکراو حال |

| | | |
|---|---|---|
| قبله د | صابرانو | صبراو قنع |
| قبله د | سرودیانو | دی رباب |
| قبله د | زاهدانو | دی محراب |
| قبله د | گمراهانو | دی لبیس |
| قبله د | عالمانو | دی تدریس |
| قبله د | جاهلانو | دی بدکار |
| قبله د | سالکانو | دی اسرار |
| قبله د | مشرکانو | دی زنار |
| قبله د | عاشقان دی | مخ دیار |

## ماخذونه :

(۱)- دزیاتو معلوماتو دپاره وګورئ : هوتک ، محمد پته خزانه ، کابل پوهنتون ، خلورم چاپ، ۱۳۵٦ ش کال ، ۱۰ مخ .

(۲) – "ښخه " کلمه دې په یوه هجا تلفظ شي .

(۳) – "زما" کلمه دې په یوه هجاتلفظ شي .

(۴)- "زموږ" کلمه دې په یوه هجا تلفظ شي .

(۵)- دزیاتو معلوماتو لپاره وګورئ : خلیل ، همیش ، ورکه خزانه ،لومړی ټوک ،پیښور، ۱۹٦۰م کال ، ۴۱۷-۴۲۳ مخونه ، همدارنګه دزیات تفصیل لپاره وګ : داوي، رحمت ، لیلی او مجنون ، کابل ۱۳٦۰ ش کال ، ۹-۳۳ مخونه .

(٦)- مرادعلي صاحب زاده دعبدالرحمن السیلانی زوی دی . پلاریي په فقیر صاحب شهرت درلود . فقیرصاحب دخپلو درو زامنو سره چې مراد علي صاحب زاده یي کشر دی په ۱۲۳۵ ه ق کال په کامه کې هستوګنه غوره کړیده . مراد علي صاحب زاده ډیر آثار لري چې دهغې له جملې ښخه یو هم تفسیر یسیر دی چې په ۱۲۸۲ ه ق کال یې لیکلی دی ، دزیاتو معلوماتو لپاره وګورئ : رښتین ، پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء دوهم ټوک ، کابل ۱۳۲۱ ش کال ، ۴٦۰-۴٦۷ مخونه .

(۷)- وګ: صاحب زاده ، مرادعلي ، تفسیر یسیر ، ج ۱ ، ډهلي ، ۱۳۰۴ هـ ق کال ، ۵۵-۵٦ مخونه .

(۸) – "فکر " کلمه دې په یوه هجا تلفظ شي .

# په پښتو ادب کې دولس څپیزه مثنوي او دهغې تاریخي سیر

په دولس څپیزه مثنوي کې فشار عموماً په دریمــه - اوومــه - او یوولسـمه هجـا راځي . دغه ډول مثنوي چې دپښتو په منځني بحر کې ویـل کیـږي دځینـو بیتونـو دهجاوو شمیر (۱۲+ ۱۲ = ۲۴) او دځینــو بیتونــو دهجــاوو شـیمر ( ۱۱+ ۱۱= ۲۲) تـه رسیږي - یعنې په دولس هجایي کې شرط ده چې دبیت هر نیـم بیتـی بـه دولـس وي او په یوولس څپه یي کې به دهربیت دنیم بیتی دڅپو شمیر یوولس ته رسیږي :

دعروضو په سیلاب تونیک سیستم کې یې عروضي شکل او تقطیع په لاندې ډول ده :

دولس هجایي :

ں ں - ں | ں ں - ں | ں ں - ں ||

یوولس هجایي :

ں ں - ں | ں ں - ں | ں ں -||

دپښتو ادب دموجوده آثارو له مخې چــې موجـود دی دولـس څپـیزې مثـنوي بیلګه دلوموړی ځل دپاره دفتح خان بړیځي په کیسه کې په ځینو منظومو نـارو کـې ګورو .

پښتانه ځینې قصې لري چې په ټوله پښتونخواکې مشهورې دي او دهرې سـیمې پښتانه ورسره آشنا دي . په دې ډول کیســو کــې دپښتـنو روحیـات - عقـاید او ملـي دودونه ښه تمثلیږي . دغه ډول کیسې دوه پهلوانان لري چــې یـو مـین او بلـه مینـه وي. په دې کیسو کې دعاشق او معشوقې وقایع او دژوندانه حالات بیانیـږي . چـې یـوه ددې کیسـو څخـه دفتحخان بړیځي داسلم خـان پـا چـا زوی دکلابسـت اوسیدونکي کیسه ده . چې را بیایي معشوقه وه . فتح خان د ٦٠ بړیځو سره هند تـه ځي . دمغلو سره جګړې کوي فتح خان او ټول ملګري یې په دې لاره کــې مـري . په دې جنګونو کې فتح خان توره او میړانه ښکاره کـوي . دغـه ډول ملـي کیسـې دوې برخې لري یوه یې دنثر برخه ده چې واقعه بیانوي او بله یــې منظومـې نـارې

[illegible]
کیږي .

پوهاند حبیبي دځینو مستندو منابعو په حواله دفتح خان دژوندانه زمانه (۹۰۰هـ) ټاکي .(۹)

دفتح خان بریخې دکیسې ځیني منظومې نارې چې په دولس څپیزه مثنوي ویل شوې دي درکنونو د عروضي تقطیع سره سمې دبیلګې په توګه راوړم :

| | | |
|---|---|---|
| ن ن – ن | ن ن – ن | ن ن – ن |
| که پاخه دی | کندهارا | نار پاخه دي |
| اسلم خان پا | چادی خوري زمو | ړه تري تله دي |
| آفرین کی | پرداهسې | نوکې باندې |
| ځان یی واچا | وه ددې با | دار دوړاندې |

همدارنګه دپښتو ادب دډګر هیرو او لوی قهرمان خوشحال خټک خپل دوه منظوم اثرونه هریو سوات نامه ( د ۱۰۸۵ هـ ق تالیف ) (۱۰) او بازنامه (۱۱) د ۱۰۸۹هـ کال کې دولس هجایي مثنوي په توګه منظوم کړې دي . دادی په لاندې ډول دهریوه څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

دخوشال خان بازنامه لاندې بیتونو سره شروع کیږي :

خدایه ته په زړه کې اچوی دامینې چې په ښکار دې مبتلا کړم ته مې وینې
چې ښې کینې مې پیژندلي دي دامینه تازما په زړه کې ځای کړله قرینه
په طفلی مې دچمن د چتو ښکار کړ زلمیتوب مې له هوسیو سریکار کړ
په غرځه پسې به تلم په سم په غرونه په توپکومې ویشتلی دي زرګونه
ورپسې مې دمرغونو سریکار شو ځان او هوش مې همګي دباز دښکار شو

دخوشال خان سوات نامه په لاندې بیتونو شروع کیږي :

په دوران دشاه جهان پادشاه ځواني وه میسره دزړه هره کامراني وه
( سرای ) له سواته فاصله لږي دیرش کروهه چې ورکوزشې تر دریا دسوات تر کوهه
درې ځیزونه مې دسوات دزړه په یادوو نور یې هر څه په حیات وماته یاد وو
یو خسران چې په حضور دواده کار و بل یې بوی دنرګس زار دریم یې ښکار و

سکندرخان خټک دخوشال خان زوی دخپل پلار دادبي مکتب پیرو او دپښتو ژبې تکړه شاعر دی چې د ( لیلی او مجنون) کیسه یې په دولس څپیزې مثنوي په ۱۰۹۰ هـ ق کال کې نظم کړې ده ، په لاس کې اسناد وله مخې دی لومړنی سړی دی چې دمنظومو کیسو بنسټ یې په پښتو ادب کې ایښی دی . نوموړی دکیسې په

نظمولو کې دکوم اثر یادونه نه کوي چې ده دې دکیسې په نظمولو کې ترې استفاده کړې وي . داسې معلومیږي چې ده داولسي روایاتو له مخې نظم کړې ده. (۱۲) دادی د ( لیلی او مجنون ) منظومې کیسې څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

که په عقل کې لقمان یا افلاطون شي    ستا حکمت وته چې وګوری مجنون شي
دخاطراوبه بنایست دلیلی ورکړي    عاشقان لکه مجنون باندې ابتر کړي

دکیسې دپای بیتونه دادي :

داچې ووایې که هسې وای یا هسې    که مېره وي دی دې ووایي داهسې
دامتل په درست جهان کې مشهور دی    تر ویشتونی نندارچې سړی باتور دی

همدارنګه غلام محمد ګګیانی ددولسې هجرې پیړۍ داوایلو شاعرانو تیر شوي دی . نوموړی څلورکتابونه هر یو تفسیر والضحیٰ دسیف الملوک قصه ، معراج نامه ، او جنګ نامه په پښتو ژبې منظوم کړي دي . (۱۳)

دده " معراج نامه " د ۱۱۱۵ هـ ق تالیف د قصیدې په فورم منظوم شوې ده . جنګ نامه یې دډیرو کوششونو سره سره په لاس رانغله نو له دې کبله دهغې دفورم په برخه کې څه نشم ویلای . له پاتې دوه اثرو څخه تفسیروالضحی دپښتو به منځنی بحر کې دمثنوي په بڼه پیل شوی دی چې څو بیتونه یې دبیلګې په توګه راوړم :

هسې وایې دصدیق په خلافت کې    یو سړی و ډوب تمام په مصیبت کې
ډیر فاسق . زاني ، میخور ډک له عصیان و    نقل کړی ده له دې فاني جهان و

دغلام محمد څلورم منظوم اثر د" سیف الملوک قصه " په غزل پیل کیږي او ددولس هجایي مثنوي برخه هم لري . ددې منظومې خطي نسخه دبرتش موزیم په ختیځه څانګه په ۳۹۸ نومره قید ده . ددې منظومې کیسې دمثنوي دپای بیتونه یې دادي :

نشوربان به ګاه دلی ګاه په ارم وه    مبتلا دشاهزاده بدرۍ په غم وه
دادنیا ده بې وفاله ځایه رده    ملګري نه کا د چا غلام محمده

صدر خان ختک دخوشال خان زوی په ۱۱۱۸ هـ ق کال د " دلی او شهۍ " قصه په منځنی بحر کې په دولس څپیزې مثنوي په نظم وویله . نوموړې یوه عشقي قصه ده چې د " دلي " او " شهۍ " دمینې او محبت څخه حکایت کوي . (۱۴) دغه پښتو منظومه کیسه دمحمد نواز خان طایر سریزه پښتو اکیدمي دپېښور یونیورستی په ۱۹۵۹ ع کال چاپ کړې ده . د "دلی اوشهۍ" کسیه په لاندې بیتونو شروع کیږي:

پس له حمده له درووده تحیاته دماضي مینو حال وایم وتاته
داقصه چې زه يې وایم بې نظیره اروېدلی ده دا ماله یوه پیره
یوه کهنه دیرینه سال پیر کلان و ګرځیدلی په هر لورې په جهان و

په همدې ترتیب حمید ماشوخیل دپښتو ادب نازک خیالي شاعر د ( شاه و ګدا ) کیسه او ( نیرنګ عشق ) له پارسي څخه په پښتو نظم اړولی دی . دغه پورتنی دوی کیسې چې عشقي دي دقافیوی رعایت له مخې حمید دپښتو په منځنی بحر کې په دولس څپیزې مثنوي ژباړلې دي . (۱۵)

حمید دشاه وګدا کیسه چې دشاه نومي هلک او یو ګدای دمینې او محبت څخه بحث کوي ، اصلاً مولانا بدرالدین هلالي چغتاني په پارسي لیکلی ده او په ( شاه درویش ) سره مشهوره ده . حمید دهلالي کیسه دغلام محمد اخوند زاده په سپارښتنه په ۱۱۳۷ هـ ق کال په پښتو نظم اړولې ده . دغه پښتو منظومه کیسه دوه ځلې چاپ شوې ده . لومړی ځل په ۱۲۹۹ کې او دوهم ځل په ۱۹۵۷ ع کال دښاغلی همیش خلیل په اهتمام په چاپ رسیدلې ده . (۱٦)

حمید ماشوخیل دپارسي کیسې دژباړې سبب او نیته داسې څرګندوي :

چې باعث اخوندزاده غلام محمد شو دنفر په خیر صاحب په خوش آمد شو
وی يې زرشه قلم واخله تکیه خدای کړه په پښتو فارسي قصه دشاه ګدای کړه
هلالي که دهلال په خیر نکار کړه ته يې میاشت دخوارلسمې په ښکار کړه
چې په زړه کې مې لړم ددې فکرت و سن زرسل اووه دیرش کاله دهجرت و

دحمید ماشوخیل د ( شاه ګدا ) مثنوي په لاندې بیتونو پیل کیږي :(۱۷)

دا آغاز مې په نامه دهغه خدای دی چې يې نوم کړه کشای دشاه ګدای دی
دالله په نوم نومړ هغه لایق دی چې په یو کن فیکون دخلایق دی
دلالت دغه نامه په هغه ذات کا چې یوازې پادشاهي دکائنات کا

حمید دشاه ګدا پرمثنوي سربیره دمولانا محمد اکرم غنیمت پارسي نیرنګ عشق ( د ۱۰۹٦ هـ ق ) تالیف چې دمثنوي په قالب کې ویل شوی دی او دعزیز او شاهد دمینې او محبت داستان دی له پارسي نظم په پښتو نظم په دولس څپیزې مثنوي ژباړلی دی په دې منظومه ژباړه کې دحمید استادی او دکلام رواني ډیره ښه څرګنده ده .

دحمید نیرنګ عشق په لاندې بیتونو پیل کیږي :

پس له حمده له درووده وايي دا داپه درد ښکلی مخ ولاړ ګدا
چې په وخت داورنګ شاه آتش پاره له مجمره دپنجاب شوله ښکاره

زماني په ډير پوکل سره بل اورکړ بيا يې پوري دعزيز دزړه په کور کړ

دحميد نيرنګ عشق دوه ځلې چاپ شوی دی لومړی ځل دغلام مرسلين له خوا دپياري لعل په اهتمام په (۸۲) مخونو کې په ۱۲۹۹ هـ ق کا ل هندو پريس کې چاپ شوی دی . دوهم ځل دامنظومه خوږه عشقي کيسه پښتو ټولنې له خوا په ۱۳۴۹ ش کال کې چاپ شوې ده . (۱۸)

همدارنګه ريدي خان دغياث خان زوی او دمسعود خان لمسی د مهمند کلي(۱۹) اوسيدونکی ددولسمې هجري پيړۍ په اوله نيمايي کې حماسي شاهنامه د (محمودنامه ) په نوم دپښتو په منځنۍ بحر کې نظم کړې ده . دپټې خزانې مولف محمد هوتک ليکي : " ماله ريدي خان هسې درخواست وکا چې په کتاب کې دمحمود نامې ځخه ډيره برخه ثبت کاندم او ريدي خان هم ماته دکتاب يو باب راکا چې دګرګين خان دوژلو قصه ده ، او هغه ما دلته وکښل ، به توفيق الله تعالى .

دادی دګرګين خان دوژلو قصې خوبيتونه دبيلګې په توګه راوړم : (۲۰)

اوس به نوتاته حکايت کړم دښو خوږ حکايت دګرګين خان دوژلو

چې ميرخان تللی اصفهان ته ونه مخ يې مکې دپاک سبحان ته ونه

پاچاتې عرض کړ ټول اقوال دپښتون دګرګين ظلم بد احوال دپښتون

ميا عمر ځمکنی ( رح) دمحمد ابراهيم زوی دکلاخان موسی زی ترکانی لمسی دی . په ( ۱۰۸۴ هـ ق ) کال دپاکستان په فريد آباد کې زيږيدلی اوپه (۱۱۹۰هـ ق ) کال کې په ځمکنو کې وفات شوی دی . نوموړی مياصاحب په ۱۱۰۵هـ ق کې دشيخ سعدی لاهوري ( ۱۰۳۳ - ۱۱۰۸ هـ ق ) لاس نيوی وکړ او دنقشبندی مجددي طريقي تلقين يې وموند . په ( ۱۱۰۸ هـ ق ) کې چې نوموړی شيخ سعدي مړ شو ، مياعمر دده ديو لوی خليفه سر اعظم شيخ يحيى اټکي ( رح) (۱۰۴۱ - ۱۱۳۱ هـ ق ) لمن ټينګه کړه دسلوک لوړو مقاماتو ته ورسيد او دارشاد اجازه يې حاصله کړه . مياعمر (رح) علاوه پرروحاني شخصيت دشعر روانه طبع درلوده. په پښتو ، پارسي ، او عربي ژبو يې اشعار ويلی دی مياعمر ډير تاليفات لري. دده په تاليفاتو کې يو هم خلاصهٔ کيداني ده چې په عربي ژبه دلمانځه په باب دحنفی فقه رساله ده .

لطف الله نسفی الکيداني ( ۷۵۰ هـ ق مړ) ليکلې چې يوه مقدمه او اته بابه لري، ددغې رسالې ځلورپښتو ترجمې معلومې دي . (۲۱)

چې یوه یې دمیاعمر (رح) پښتو کړې منظومه خلا ده . ددې منظومې خلاصې دلومړی باب فورم قصیدی غوندې دی او نور بابونه یې دمثنوي په فورم دي ، چې دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزه مثنوي نظم شوې دي . خودنظمولو نیټه یې نه ده معلومه دځینو قراینو له مخې دخلاصهٔ کیداني دتالیف نیټه د ( ۱۱۴۶ یا ۱۱۴۸ ) سره سمون خوري (۲۲)

میاصاحب دې خبرې ته داسې اشاره کوي چې څو بیتونه یې دبیلګې په توګه راوړم :

خلاصه په عربي کې ښه کتاب دی دنمانځه دمسایلو انتخاب دی
په خاطرمې راغله دا چې یې پښتو کړم په پښتو ژبې اسان پرپښتنو کړم
بارې زه ودې تصنیف ته وزګارنه وم زه مشغول وم په بل کار وزګار په څه وم
یوه ورځ قرة العین مې فرزندان تل دې وي فضل په دوی دپاک سبحان
نورالعین ( محمدي ) مشر فرزند ورپسې ( عبیدالله ) دی ارجمند
په ( میاګل ) سره مشهور په هر دیار راغی کښیناست ونیوه ده زما کنار
راته کاندي مسایل چې دصلوۃ دي خلاصه کې عجایب په درجات دي
بارې داکتاب په ژبه عربي دی کله یوه پرې هر طالب افغاني دی
مسایل دخلاصې که په پښتو شي ډیر په کار به داکتاب دپښتنو شي
په بار بار چې دمیاګل وه داالحاح په پښتو ژبه زما وشوه صلاح

بل پښتون شاعر چې په پشتو ژبه یې په منځني بحـر مثنوي ویلـی دی .اخوند ګدادی چې اصلي نوم یې نه دی معلوم اوپه ګدا شهرت لري . (۲۳) دده دیوه بیته څرګندیږي چې دمغلو کمپله دده په ژوند او یا دهغه دمخه تړوله شوې وه، لکه چې وایې :

چې له عدله له انصافه یې څان وښکو داورنګ له کوره څکه سلطنت لاړ

ده په یوه جنګ کې دپښتنو دیوه مشر قایم خان دمرګنیته په نظم کې " بلغ العلا" ښودلی چې دجمل حساب له مخې ۱۱۶۲ هـ ق کیږي. تردې وروسته نه معلومیږي چې شاعر ترکومه وخته پورې ژوندی پاتې شوی دی . په هرحال نوموړی ددولسمې هجري په دوهمې نیمایې کې شاعري کوله .

ګدا عالم سړی و په دیني او مذهبي کتابونوکې دښو معلوماتو خاوند و . د (نافع المسلمین ) په نوم یې یو کتاب دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزه مثنوي نظم کړی دی چې دډیرو علومو مجموعه ده . دغه منظومه څای په څای غزلې هم لري ولې دمثنوي دموضوعاتو سره اړیکې نه لري . دغه منظوم اثر کې

دعقایدو، فقه ، تفسیر ، حدیث ، تصوف او نورو مسایلو بحث راغلی دی. داخوند ګدا دغه منظوم اثر دشیر محمد خان له خوا په ۱۳۰۲ هـ ق کال کې دډهلي په مطبعهٔ فیض عام کې په ۳۱۲ مخونو کې خپور شوي دی . (۲۴) ددې چاپي اثر پیل په لاندې بیتونو دی :

هغه شپه چې واسمان وته روان شو    له مکانه لا مکان وته روان شو
هغه شپه اتلس کاله ؤ درازه    خبرنه شو څوک دده دپټه رازه

په همدې ترتیب دپښتو ژبې بل پښتون شاعر مسعود ګل پاسني دی چې د ۱۲۰۰ هـ په شاوخوا کې یې ژوند کاوه (۲۵) نوموړی دمیاعمر څمکني (رح) مریدو . دخپل پیر په ستاینه کې یې یوه مثنوي ویلې ده . ولې له بده مرغه نه یې دخطي نسخې اونه یې دچاپي منظومي په کتلو یا لیدلو بریالی شوم . بلـه منظومه یې داحمد شاه بابا دجګړو او فتوحاتو بیان دی چې دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزه مثنوي نظم کړي دی .

مسعود ګل پاسنی یو حماسي او رزمي شاعر و . دادی داحمد شاه بابا دجګړو په باب یې دمثنوي څوبیتونه دنمونې په توګه راوړم :

جان محمد دراني دارنګ حکایت کا    حکایت داحمدشاه دولایت کا
اول کال چې شو داخل په هندوستان    دپنجاب له ملکه تیر ګیتي ستان
اراده یې وشوه بیا د کندهار    او مهم یې کړ موقوف دکندهار

په همدې ترتیب احمدي صاحب زاده دمیا عمر (رح) کشر زوی چې اصلي نوم یې عبیدالله و او په میاګل مشهورو (۲۶) ده علاوه پر روحاني مقام په پښتو ژبې دشعر ویلو روانه طبعه درلوده . نوموړی ددیارلسمې هجري پیړۍ په شروع کې دهفت پیکر داوو قصو څخه د جهاندار شهزاده قصه دپښتو په منځنی بحر کې په دولس څپیزه مثنوي نظم کړې ده . دغه منظومه قصه په ۱۹۶۱ ع = ۱۳۸۰ هـ ق کې نصرالله خان نصر الکوزی دپیښور په شاهین برقي پریس کې په ۱۱۱۵ مخه کې چاپ کړې ده . (۲۷) ددغې منظومې چاپ کیسې دبیتونو شمیر ۱۱۴۰ ته رسیږي . دپیل بیتونه یې دادي :

کوي بیاتو تی دباغ رنګ رنګ خبرې    چې خورې دي وبلبل ته تر شکرې
په قهقه شوه په خندا شوه پري زاده    دچا هیره به وه دا زما بنه یاده

په همدې ډول پښتني شاعرې سپینې دنورمحمد خان الکوزی لور دهرات دمحاصرې منظوم تاریخ دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزې مثنوي په ۱۲۵۵ هـ ق کال منظوم کړی دی . (۲۷) نوموړی په دې منظوم تاریخ کې په حمد او نعت

پیل کوي ، وروسته دشاه کامران او وزیر یار محمد خـان دتـورې او میرانـې ستاینه کوي دادي دسپیني دمنظوم تاریخ دحمد څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

لومړی ځښتن دټول عالم‌ستایمه بیا محمد رسول اکرم ستایمه

درود پر واړو اصحابانو دې وي دپاک نبي (ص) په ښو یارانو دې وي

همدارنګه معین الدین چې دپیښور چارسدې ته نژدې اوسیده په ( ۱۲۵٦ هـ ق ) کال یې د ( عذرا اوواموق ) قصه له پارسي څخه دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزې مثنوي په پښتو اړولې ده. ددې کتاب یـوه نسخه پـه بریتیش مـوزیم کـې خوندي ده معین الدین د ( عذرا او وامق) دپښتـو منظومـې ترجمـې نیته داسـې ښیي (۲۸) :

داکتاب چې په اتمام ورسیده زما هسې له هجرته یادیده

چې یو زردوه سوه شپږ پنځوس صاحبه دهجرت کلونه تیرو بوالعجبه

د( عذرااو وامق ) دمینې او محبت عاشقانه کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

دا آغاز مې په نامه دپاک خالق دی چې په عشق یې دغذرا سوی وامق دی

شنې مانی یې په هوا کړې او یزاندې یودبل په سرولاړې لاندې باندې

چې قدرت یې دمخلوق په بهبود راغی له پردې دعدم څکه وجود راغی

انځرګل ددیارلسمې هجري پیړۍ ددوهمې نیمایې کې دپښتو یو خوږ ژبې شاعر تیر شوی دی . نوموړی په ۱۸۴۷ ع - ۱۲٦۰ هق کې د ( ترانهٔ محفل ) په نامه یـو کتاب دپښتو په منځنۍ بحر کې په دولس څپیزې مثنوي له اردو او پارسي څخـه پـه پښتو اړولې دی .

ځای په ځای دکیسې دموضوع سره غزلې هم راوړي چې دشاعر ادبـي قـدرت ترې ښه څرګندیږي'په دې منظومه کیسه کې دسـلطان محمـود غزنـوي عدالـت او دښځو عفت بیان شوی او دوو مینانو هر یو ( نیـک اخـتر) او سـوداګر زوی او ( روښ بانو) دپاکې مینې او محبت څخه حکایت کوي . (۲۹)

شاعر لومړی په حمد او نعت پیل کوي او بیا خپل ځانته دکیسـې دنظمولـو امر کوي چې څو بیتونه یې دبیلګې په توګه راوړم :

لاس کـړه پـورې پـه کیسـه بـاندې تلوارکـړه
سـامعان پـرې دمحفـل ټول خـبردار کـړه
شـپه تیریـږي لـږ سـاعت دی پـه کـې پـاتې
درنـګ سـاعت تـه بـه مارغـان بـاغ تـه کـړي مـاتې

يــخ نســيم بــه دســبا اوس جــاري كيــږي
مــرور گل پــه گلشــن كــې پخلاكيــږي
ســروه كــج گردن دبــاغ منــځ كــې ولاړه
دبلبــل دنــه راتلــو پــه زړه لتــاړه
صنوبــر خــواره كــړه لاس ډيــردی خوشــحاله
همســري لــه دې چنــار راغلــي خواتــه

ابراهيم شاه ددياړلسمې هجري پيړۍ په دوهمه نيمايې كې يو حماسه سرا او داستان ويونكی شاعر تير شوي دی . نوموړی دسرحدد توابعو كالوخان كې ژوند كاوه اود تراباڼ ديو قصه دده له تاليفاتو څخه ده . (۳۰)

ابراهيم شاه دغه كيسه دپښتو په منځنی بحر كې په دولس څپيزې مثنوي نظم كړې ده . ديو تراباڼ او بيربل نامه په ۱۳۵۵ هجري قمري كال كې گهرک سنگ او لال سنگ دلاهور په كارونيشن مطبعه په ۲۴ مخونو كې چاپ كړې ده. دبيربل نامې برخه يې منثوره ده (۳۱) دديو تراباڼ منظومه كيسيه په لاندې بيتونو شروع كيږي :

اول وايمه ثنا درب رحيم چې پادشاه دی دتمام جهان كريم
بيا درود پر محمد آخرزمان دی چې سردار دكل عالم دانس وجان دی

همدارنگه ملاولي محمد سواتی چې دسوات دمشهور روحاني ميا عبدالغفور صافي مريد واو خپل مرشد تـه يـې ډير ارادت درلـود .دی پـه ۱۲۳۰ هـ ق كې زيږيدلی او تر ۱۲۹۵ ه ق پورې ژوندی و . نوموړی دديارلسمې هجري پيړۍ په دوهمه نيمايې كې يو كتاب دپښتو په منځنـي بحـر كـې پـه دولـس څپيزې مثنوي منظوم كړی دی چې دبيتونو شمير يې (۲۰۰۰) ته رسيږي .(۳۲)

ولي محمد پـه دې منظـوم كتـاب كـې دخپـل مرشـد ميـا عبدالغفـور صـاحب دژوندانه ټول واقعات په نظم راوړي دي . دنوموړی منظوم كتاب ديوې غزا حـال چې دشاعر دژوندانه په وخت كې واقع شوي و څو بيتونه دنمونې په ډول راوړم:

په وسلو سره و رېه ښه دستور الول باندې خوري زلفې دحور
تيرې نورې يې په ملاكې اويزاندې چقماقي ټوپک يې پاس په اوږو باندې
كمربند سره وې ملا ددوی ترلی اوسرې سترگې يې په وينو وي لړلی

مولوي احمد تنگي چې كنيت يې ابو عبدالله دی . پـه ۱۸۴۵ ع = ۱۲۶۱ هـ ق كې دهشتنغر په لوی كلی تنگي كې زيږيدلی دی . پـه ختـه ابراهيـم مسافر خيـل محمدزی دی . (۳۳) دی خپل ځان داسې معرفي كوي :

هشتنغرزما وطن دی | په تنګی کې مې مسکن دی
په نسب مسافر خیل یم | خصوصاً ابراهیم خیل یم
او احمد دی زما نوم | وارو خلکو ته معلوم

نوموړی تراتلس کلنی پورې بزګري کوله دځوانی په وخت ورسره دزده کړې مینه پیداشوه دوخت دعلماوو څخه یې مروجه علوم لکه صرف ،نحو ، فقه ، حدیث او تفاسیر زده کړل اوپه دې علومو کې دلوی لاس خاوند شو .نوموړی قوي حافظه اوښه استعداد درلود . په نظم او نثر داوړو کې دتالیفاتو خاوند دی . دی په ساده نثرلیکلو ډیر مشهور دی او کله چې یې دپادری هیوز سره پیژند ګلوی وشوه . نوموړی دانګریزانو دپښتو استاد وټاکل شو ( جکسن ) او ( برډ) د ده دشاګردانو څخه دی . ده په نظم کې پوره استعداد درلود .نوموړی ترزده کړې وروسته په تنګي کې نورو طالب علمانو ته درس ورکاوه . ده دخپل قوم او ولس داصلاح دپاره ښه فکر درلود. په پښتو ادب کې ده په نظم او نثر داوړو کې نه هیریدونکی خدمتونه کړي دي . ده به په هر اختر او جمعه کې نوې نوې خطبه ویله . دی ددغه اصلاحي فکر سره سره بیاهم مجبور شو چې تنګي پریږدي . دی اول دمردان ( تورو) نومي کلي ته لاړ بیا له هغه ځایه تهکال ته ورغی او هلته یې ژوند اختیار کړ . نوموړی په ۱۲۸۳ هـ ق د ( غل اوقاضي) کیسه دمثنوي په بڼه دپښتو په لنډ بحر کې نظم کړه اوپه ۱۲۸۸ هـ ق کال یې د ( جمجمه پادشاه) قصه ددولس څپیزې مثنوي په قالب کې دپښتو په منځنی بحر کې وویله . دغې کیسې کې دککرې ( جمجمې) مرکه دعیسي علیه السلام سره راغلې ده . څرنګه چې مولوي احمد په احادیثو او تفاسیرو پوره معلومات درلودل نوپه دغه کیسه یې دیقین نه ډېرو بیان په مقدمه کې راوړی . نوموړی دغه کیسه دمحمد اکبر او میامحمد چې دده ملګري و په غوښتنه نظم کړیده زه هم دکیسې دنظمولو سبب هغه څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم چې مولوي احمد دقصې په نظمولو مجبور شوی دی . (۳۴).هغه بیتونه دادي :

پیښور کې دي زما یو دوه یاران | مومنان مسلمانان موحدان
وي چې دابنکلي کیسه زموږ دپاره | په پښتو ژبه اسانه کړه تیاره
ماچې فکر وکړ ډیر سره دخان | پاتې شوم په دې خبره کې حیران
وې مې داقصه هیڅ اصل نه لرینه | چې سرې پرې درښتیا ګومان وکړینه

سید ابو علي شاه دسید امیر الدین زوی دپیښور دشبقدر په اسلام آباد ( سوتې ماره ) نومي کلي کې په ( ۱۸۳۳ =۱۲۴۸هق کې زیږیدلی اوپه ۱۹۰۳ع = ۱۳۲۰ هـ ق) کې وفات شوی دی . (۳۵)

نوموړی ددیارلسمې هجرې پیړی داواخرو په شاعرانو کې راځي . دی په پښتو ادب کې ډیر منظوم آثار لري چې زیاتره یې دقافیوي رعایت له مخې په دولس څپیزې مثنوي نظم شوي دی . دادی په لاندې ډول دده دهغو آثارو نومونه او بیلګې ګرانو لوستونکوته وړاندې کوم چې په ۱۲ هجایي مثنوي دپښتو په منځني بحر کې ویل شوي دي :

۱ ( مجموعهٔ جنګ نامهٔ افغاني جدید ) : په دې منظومه مجموعه کې د (جنګ نامه میرحاتم قصه شمشاد – قصه قنبر وفادار ) درې منظومې جنګي کیسې راغلې دي . دغه نوموړی منظومه مجموعه په ( ۱۹۲۰ ع = ۱۳۳۸ ه ق ) کې دغلام مرسلین له خوا په کریمي پریس لاهور کې په ( ۵٦ ) مخونو کې چاپ شوې ده.(۳٦)

اوس دهرې منظومې بیلګه په لاندې ډول راوړم :

الف : ( دمیرحاتم جنګ نامه ) : په دغه جنګ نامه دمنظومې مجموعې داول مخ څخه شروع اوتر ۳۸ مخ پورې دوام کوي . نظم یې دقافیوي رعایت له پلوه ۱۲ څپیزه مثنوي دی اوپه لاندې بیتونو شروع کیږي :

دثنا خاوند زما هغه خاوند دی      چې ورکړی چاله تاج وچاله کند دی
چاله ورکړی دایمان غنچه په لاس      بعضې دی کړي لعنتی لکه خناس

ب : ( قصهٔ شمشاد) : دغه قصه دمجموعې د (۳۸) مخ څخه شروع اوتر ۴۳ مخ پورې رسیږي . دنظمولو فورم یې ۱۲ هجایي مثنوي دی اوپه لاندې بیتونوشروع کیږي :

دثنا لایق مې هغه پاک الله دی      ماورا دی له حاجته لوی پادشاه دی
په قدرت یې آسمانونه ودرولی      ښه محکم میخونه یې کړه دغرونوځلی

ج : ( قصهٔ قنبر وفادار) : دغه منظومه کیسه هم دنظم دبنګلی سکښت له مخې دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزې مثنوي منظوم شوې ده . دغه منظومه کیسه دمجموعې له (۴۴) مخ څخه شروع او تر ۵۴ مخ پورې ادامه مومي. دمجموعې په دوو ورستیومخونوکې غزلې راغلي دي .

دپیل بیتونه یې دادي :

دثنا صفت لایق مې هغه خدای دی چې يې ماشي له ورکړی روح له خای دی
سترګې سرښايسته وزر غوږ ګيده پوزه ورته ښه وکړه نظرودريږه روځه

۲: ( مجموعه شمسه وقهقه ، قصهٔ نصير بربري ، قصه مرغابي ، قصه جابر انصار. )

دغه پورتنی څلورمنظومې کیسې هم سید ابو علي شاه دپښتـو پـه منځنـي بحـر کې په دولس څپيزې مثنوي ويلی دي اوپه يوه پښتی ( وقايه ) کـې دغـلام مرسـلين تاجر له خوا په ۳۲ مخونو کې په مطبعه کريمي پريس لاهور کـې چـاپ شـوی دی . (۳۷) دقهقهې کیسه دمجموعې له اول مخ څخه پيل اوتر (۱۰) مـخ پـورې رسـيږي . دنصير بربري کیسه دمجموعې لـه (۱۰) مـخ څخـه شـروع اوتـر (۱۹) خ پـورې دوام کوي .دجابر انصاري کیسه دمجموعې د ۱۹ مخ څخه پيل کيږي اوتر ۲۹ مخ پـورې ادامه مومي . بالاخره دمرغابي کیسه د ۲۹ مخ څخه پيل او د ۳۲ مخ ترپای پـورې ادامه مومي . دادی په لاندې ډول دهـرې منظومـې کيسـې دپيـل څو څو بيتونـه دبيلګې په توګه ګرانو لوستونکو ته وړاندې کوم :

الف : د ( قهقهې کیسه ) : دغه کیسه په لاندې بيتونو پيل کيږي :

زما خدای هسې بې مثله بې مثال دی پورته دی دهر ګومانه دهر خيال دی
که مارغه دقياس روان شي ځی په پرشي په موندو دبيابان بي مات وزرشي

ب : د ( نصير بربري کیسه ) : دغـه منظومـه دولـس هجـايي مثـنوي پـه لانـدې بيتونو شروع کيږي :

که څه پټ دي په پرده کې څه موجود دې
همه واړه په قدرت درب معبود دې
دواړه سترګې دغفلت دخوبه واکا
يو خوابل خوا نظرو کاتماشاکا

ج : د ( جابر انصاري کیسه ) : ددې منظومې کيسې دپيل بيتونه دادي :

خدای ( مې ) هغه دی چې جل شانه دی بل صفت يې لا اله الاالله دی
په حکمت او قدرت دارنکه غالب دی هر يو روح لره جوړکړی ده قالب دی

د : د ( مرغابي کیسه ) : دغه منظومه دولس هجايي مثنوي په لاندې بيتونو پيـل کيږي :

خدای مې لا اله الا الله دی پيغمبر مې محمد رسول الله دی
دعربو دعجمو دټول سره درقربان شم دتمام جهان نه غوره

۳: جنګ نامۀ کلان ( داماما نو جنګ نامه ) : دادسيد ابوعلـي شـاه يـوه منظومـه حماسه ده چې دکربلا له پيښو څخه بحث کـوي . دغـه منظومـه نومـوړی شـاعر پـه

۱۳۰۵ هـ ق کال تالیف کړې ده . فورم یې ۱۲ هجایي مثنوي دی'دغه منظومه دمیا محمد شریف او عبدالطیف له خوا په ۱۳۲۴ هـ ق کې دلاهور په اسلامیه مطبعه کې په ۹۲ مخونو کې خپره شوې ده . دپیل بیتونه یې دادي :

خدایه زړه مې له گناه له خیرې سپین کړې
ستا صفت مې په خاطر کې همنشین کړې
ذکر فکر مې جاري ستا په صفت کړې
ځنکدن کې مې گویا په حقیقت کړې

۴: مناقب غوث الاعظم : په دې ۱۲ هجایي منظومې مثنوي کې سید ابو علیشاه دپیران پیرصاحب ۲۱ مناقب راوړي دي.

( مناقب غوث الاعظم ) دکهرک سنگ او لال سنگ له خوا په ۱۳۵۸ هـ ق کې په ۵٦ مخونو کې سرحدالیکتریک پریس کې چاپ کړی دی(۳۸) دغه مناقب په لاندې بیتونو پیل کیږي :

حمد ثنا ښایېږي خدایه ستاله شانه واصفان دي له صفت نه دې ناتوانه
چې پیدا دې ددنیا گرم بازار کړ هر یو کس دې بیا پخپل ځان طلب گار کړ

همدارنگه مولوي عبدالرحیم چې ددیارلسمې هجري پیړۍ په اواخرو کې یې ژوند کاوه ، نوموړی د مردان درځړ په امان کوټ نومي کلي کې اوسیده . دی عالم سړی و . دجزري مقدمه یې دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزې مثنوي ویلې ده . دغه منظومه دمیاحمد صحاف او محمد اکبر له خوا ددهلي په مطبعه فیض عام کې په ۱٦ مخونوکې چاپ کړې ده . بل چاپ یې دسندرسنگ له خوا په ۱٦ مخونو کې دلاهور په اسلامیه پریس کې خپور شوی دی . (۳۹)

دپیل بیتونه یې دادي :

حمد ثناده خاصه تاله یاودوده زیات له شمیره له عدده نامحدوده
زه به څه صفت کومه ستا سبحانه کوتاه داده زه ناتوان یم مهربانه

بل پښتون شاعر امانت ملیاردی . دده دژوند زمانه ددیارلسمې هجري پیړۍ اواخر اټکل کیږي نوموړی دیوسفزو دسیمې دمینانومي کلی اوسیدونکی و او دعوامو په ډله کې داستان ویونکي شاعر دی . (۴۰)

امانت ملیارد ( شهزاده دل افزا او دل افروز) کیسه په درې فورمونو ( غزل قصیدې مثنوي ) منظوم کړې ده دمثنوي برخه یې ۱۲ هجایي او ۱٦ هجایي ده . شپاړس هجایي دمنظومې د ۷ مخ څخه شروع کیږي او تر ۹ مخ پورې دوام کوي . دولس یې مثنوي په لاندې بیتونو پیل کیږي او ځای په منظوم کتاب

کې دغه ۱۲ هجايي فورم دمثنوي استعمال شوی په غزل، قصيده او مثنوي دکيسي دموضوع تسلسل ډير ښه مراعات شوی دی .

د ۱۲ څپـيزې مثنوي دشروع بيتونه په لاندې ډول دي :

شوه دايي دشهزاد نه په پوښتنه مقامي يې يا سپاهي يې بې وطنه
بې وطنه که بادشاه وي هم فقير دی که فقير وي په خپل ځان باندې امير دی
زه عاجزه يم زاري کومه تاته روی دخدای که ته رښتيا ووايه ماته

دغه پورتنی منظومه کيسه په ۱۳۲۷ هـ ق کال دميـا محمـد اسـحق پـه فرمـايش دلاهور په اسلاميه مطبعه کې په ۱۲۰ مخونو کې چاپ شوې ده .

همدارنګه عجـب خـان پخـګی دزعفران زوی اوديوسـف لمسـی دديارلسـمې هجري پيړۍ داواخرو پښتو قصه ويونکی شـاعر تـير شـوی دی . نومـوړی دينـي او رواياتي کيسې نظم کړي دي . (۴۱) دده دمنظومـو آثـارو څخـه هغـه آثـار چـې پـه دولس څپيزې مثنوي دپښتو په منځنـۍ بحـر کـې ويـل شـوې اوماتـه دتحقيـق او څېړنې په وخت کې څرګند شوې دی سره دبيلګو ګرانو لوستوکو ته وړاندې کـوم . هغه منظوم اثار په لاندې ډول دی :

۱ : (جنګ يعقوب (ع) به معهٔ عملاق پادشاه ) :

دغه منظـم اثر دقافيوي رعايت له مخې دپښتو په منځنۍ بحـر کـې ويـل شـوی دی . دغه منظوم اثر په ۱۹۳۳ ع په ۳۲ مخونو کې په نـامي پريـس انـارکلی لاهـور کې دديوان ګهرک سنګ له خواچاپ شوی دی . (۴۲)

دپيل بيتونه يې دادي :

دثنا لايق مې هغه رب قدير دی چې بې شکه دی رحمان رحيم بصير دی
بادشاهي کړي بې وزيره بې اميره شاه ګداکړي ګداشاه کړي بې تاخيره

۲ : ګلدسته کرامات غوث پاک :

په دې منظوم دولس هجايي مثنـوي کـې دحضـرت عبدالقـادر ګيلانـی بشـپړه دژوندانه سوانح دزيږدني له نيټې څخه تر وفاته پورې په روايتي ښکـل راغلـې ده . دغه منظومه په ۱۹۲۸ ع کال په لکشـمي ارت راولپنـډي کـې پـه ۲۳۶ مخونـو کـې دمحمد حسن له خوا چاپ شوې ده . (۴۳) د پيل بيتونه يې دادي :

دثنا لايق هغه رب کريم دی چې بې شکه دی بادشاه رحمان رحيم دی
هم رحمان دی هم رحيم دی هم ستار چې قاهر دی بيا بې شانه په کفار

۳: ( خاورنامهٔ کلان مشهور به جنګ نامهٔ شیر خدا ( حضرت علي ) . ) :

دغه منظومه هم دپښتو په منځني بحرکې په دولس څپیزه مثنوي ویل شوې ده او د ملا عبدالسلام او محمد حسن له خوا په کریمي پریس لاهور کې په (۴۸۴) مخونو کې خپره شوې ده چې دحضرت علي (رضؓ) له جنګونو څخه بحث کوي. دپیل بیتونه یې دادي :

دثنا لایق مې هغه ذوالجلال دی چې زوال ورسره نشته لایزال دی
تل ترتله پادشاهي دده قایم ده له اول نه تر اخر پورې دایم ده

په همدې ترتیب بل پښتو حماسه سرا شاعر دلاور طالب عمر خیل دی. نوموړی د دیارلسمې هجري پیړۍ په اواخرو کې ژوند کاوه . په قوم غلجی عمرخیل دی . غور نیکه یې دمیدان دنرخ اوسیدونکی و . دنوموړی شاعر کورنی په ګڼه کامې ته تللي او دی په کامه کې زیږیدلی او هلته اوسیدلی دی . ده دغازي مغل خان میرزایي کوله . (۴۴)

مغلخان یو ملي مبارز او لوی مجاهدو . انګریزانو ته یې ددوهم تیرې په وخت کې په ګوریلایي جنګونو کې سخت تاوانونه اړولي وو نوموړی شاعر دغزا او جنګ په ټوله دوره کې دمغل خان سره و ، او ټول واقعات یې پخپلو سترګو لیدلي او دسترګو لیدلی حال یې د ( مغل خان جنګ نامه ) تر عنوان په پښتو نظم دمثنوي په قالب کې دپښتو په منځني بحر کې ویلی دې . دمغل خان جنګ نامه چې په لاس راغلې دپای برخه یې نیمګړې ده . نوموړی جنګ نامه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

په نامه دهغه خدای مې دابیان دی چې یونوم یې په نومونو کې سبحان دی
هم صانع دی دجمله وُ مصنوعاتو هم رازق دی دهمه و مرزوقاتو
بلا شبه بې مثاله بې مانند دی بلاشکه بلا ریبه بلا چند دی

ددلاور طالب عمر خیل دوهم منظوم اثر چې په دولس څپیزه مثنوي بې دپښتو په منځنی بحر کې ویلی دی ( بهار دانش ) دی . دغه پښتو بهار دانش یې دعنایت الله دبهاردانش څخه ژباړلی دی . په دې منظوم اثر کې دښځو مکرونه راغلي او متن یې دچهاردرویش له متنه سره شباهت لري چې ملا نعمت الله په پښتو نظم او مولوي عبدالرحمن اپازي په پښتو نثر ژباړلی دی دنوموړي شاعر د ( بهار دانش ) دپای برخه نیمګړې ده . ددلاور طالب عمرخیل بهار دانش په لاندې بیتونو شروع کیږي :

په نامه دهغه پاک پروردګار افرین دی خرد بخش دکل روزګار

نورالله يوسف زی ،خُر ملک زی چې اصلي ځای يې ( يار حسين ) نوميږي او له هغه ځايه څخه جهانګيري ته راغلي دي ده ديارلسمې هجري پيړۍ په اواخرو کې ژوند کاوه او په ۱۲۹۰ ه ق کال يې دنظامي ګنجه وي سکندرنامه د (چمن افغاني ) په نامه په پنځو زرو بيتونو کې دپښتو په منځنۍ بحر کې په دولس څپيزه مثنوي ژباړلې ده . شعري ژبه يې ډيره خوږه او روانه ده او دترجمې اثر پکې نه ليدل کيږي . (۴۵)

ده د ( چمن افغاني ) منظوم اثر په لاندې بيتونو پيل کيږي :

ربه ستا ذکر مې قوت دجګر اوسه | ستا صفت زما دژبې جوهر اوسه
پخپل فضل صفايي دضمير راکړه | ضمير ماله له هر چانه منير راکړه
شګفته مې په صورت کې دزړه ګل کړې | په دې ګل مې په نغمه ژبه بلبل کړې

همدارنګه په پښتو ادب کې قاضي عبدالرحمن دديارلسمې هجري پيړۍ داواخرو دڅوارلسمې هجري پيړۍ داوايلو شاعر تير شوی دی . نوموړی په قام بابوزی او دسوات دکاتيلي دکلي اوسيدونکی وه . ده د ( فسانهء عجائب) قصه د (افسانهء دلپذير) په نوم په پښتو ژباړلې ده . دغه منظومه پښتو ( افسانهء دلپذير) په حمد پيل کيږي او دحمد او نعت څخه وروسته بيا شاعر دقصې دنظمولو سبب څرګندوي او له هغې نه وروسته په اصل کيسه پيل کوي . نوموړی ددې کيسې په نظمولو په ۱۲۹۹ ه ق پيل کوي اوپه ۱۳۰۴ ه ق کې يې پای ته رسوي . (۴۶)

دی دې نکتې داسې اشاره کوي :

په سن دولس سوه نه نوي کې جانه | داکيسه نيمه پوره شوه واوره مانه
نيمه پاتې وه تراوسه پورې و روره | خوآخرشوله پوره اوس راشه ګوره
چې مې وشماره په زړه کې سن وساله | ووځلور دپاسه ديارلس سوه لاله
شپاړسم تاريخ وه مياشتې درمضان | چې په ښه رونق شو ختم دابيان

دنوموړي شاعر شعري ژبه خوږه روانه ده او ترجمې تاثير پکې نه معلوميږي ځای په ځای غزلې مربع او دعروضي نظم نور ډولونه دکيسې خوند لازياتوي . ده (افسانهء دلپذير) دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپيزه مثنوي ويلې ده . دادی څو بيتونه يې دبيلګې په توګه راوړم :

ناقلان دحکايتو عجايبو | ناصحان درنګينه وو مطالبو
مورخ دتحرير ونو تقريرونو | مشرح دنوادرو کتابونو

احمد خلیل په ۱۳۰۱ ه ق کال کې دقصص الانبیا نومي کتاب دجواهرالانبیاء په نوم دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزه مثنوي منظوم ترجمه کړی دی . یوه نسخه یې دلندن په موزیم کې موجوده ده . نوموړی دکتاب په پای کې خپل ځان معرفي کوي . ملاګل احمد وایې چې زما اصلي تاتوبی دتپهء خلیل سفید ډیری نومي کلی دی . بیا وایي:

پیدایش مې وو هغه ښکلی وطن کې — دااحوال مې درته ووې په ګفتن کې
خای مې هلته کې موجود دی هم دفتر خپل — هم په هغه خای لرمه ډیرتبرخپل
غرض دا اصلي مې هغه خای وطن دی — تقدیر ګوره پجګی کې مې مسکن دی
پجګی کې مې حالا دی سکونت — جمعه خان څخه کومه امامت
که څوک و که ددنیا رانه پوښتنه — من داني مې کورکې نشته دی ښادمنه (۴۷)

داحمد خلیل جواهر الانبیاء دحاجي عبدالخالق او فضل مالک له خوا په شاهین برقی پریس پیښور کې په (۳۷۶) مخونو کې خپورشوی او چاپي نسخه یې دښاغلی حبیب الله رفیع په خانی کتابتون کې شته .

داحمد خلیل دغه نوموړی منظوم اثر په لاندې بیتونو شروع کیږي :

حمد ثنا ده دغني رب الارباب — چې هرکار یې په قدرت دی باثواب
نه یې سیال مثال یادیږي دهمتا څوک — نه یې شته دمصلحت چیرته پیداڅوک

په پښتو ادب کې ملا رحمت دسرحد دسیمې اوسیدونکی دڅوارلسمې هجري پیړی داوایلو شاعر تیر شوی دی،نوموړی ( جنګ نامهء زیتون) دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزې مثنوي نظم کړی . (۴۸)

دغه منظومه جنګ نامه په ۱۳۳۵ ه ق کال کې دمیا محمد شریف او عبداللطیف له خوا په (۳٦) مخونو کې دلاهور په اسلامي پریس کې خپره شوې ده . (۴۹)

دپیل بیتونه یې دادي :

اول وایمه ثنا دپاک رحمان — دی هغه خالق رازق دکل جهان
په اوبو یې فرش دزمکې په قدرت — غوړولی دی پخپل کامل حکمت

دپای بیت یې دادی :

ای رحمته وکړه شکر کتاب تم شو — په یوواردې زړګی سپک له ډیره غم شو

غلام محمد پوپلزی چې په چارسده کې اوسیده،دده په باب ډیر معلومات نشته ولې دده دلاس ته راغلو تالیفاتو څخه دا اټکل کیږي چې نوموړی په علم او معرفت کې دلوی قدرت خاوند و . نوموړي دالطاف حسین ( حالي) پاني پتی هندوستاني ادیب داسلام مدوجزر) تر عنوان لاندې کتاب چې په اردو کې

دمسدس په ډول ليكل شوى دى . او دمسلمانانو په دماغونو كې يې ساحرانه تاثير كړى دى . اوپه دې كتاب كې داسلام دعروج او زوال او دهغو موجبات په ښه شان شرح شوي دې . دپښتنو دبيداري لپاره دمثنوي په بڼه په پښتو نظم ترجمه كړې پدې ترجمه كې يې د ۱۲ څپيزه مثنوي ليار غوره كړې ده . يقينا غلام محمد دقام دخدمت او بيداري لپاره ښه كتاب غوره كړې او دهغې دترجمې دعهدې څخه په ښه توګه وتلى دى . دغلام محمد دترجمې نيټه نه ده معلومه ولې دده دغه منظوم ترجمه شوى اثر په ۱۳۱۰ ه ق = ۱۸۹۳ ع كې چاپ شوى دى . ده غالباً دحالي ( داسلام مدوجزر) دخوارلسمې هجري قمري په اوايلو كې په نظم ترجمه كړى دى .

ده خپله ترجمه په لاندې بيتونو پيل كړې ده :

له سقراط حكيم نه وكړه چاپوښتنه    چې هوښياره دكامل عقل څښتنه
كوم يو رنځ دى چې سرى پرې هلاكيږي    په دنيا كې يې دارو نه پيداكيږي

غلام محمد دحالي دمدوجزر دترجمې په ابتداكې يوه عالمانه تبصره ليكلى اودپښتنو ورونو دبيداري اوخدمت په نسبت يې كتاب ترجمه ، او پخپلو پيسو چاپ كړى دى . (۵۰)

همدارنګه سميع الله منشي دخوارلسمې هجري پيړۍ داوايلو داستان ويونكي شاعر و چې دپيښور په تنګي كې يې ژوند كاوه .(۵۱)

ده د ( ماه منير او ملكه بې نظير) قصه دپښتو په منځنى بحر كې په دولس څپيزې مثنوي نظم كړې ده . دغه قصه درې ځلې چاپ شوې ده . لومړى ځل په ۱۹۱۳ ع كال په (۲۰۰۰) مخونوكې دوهم ځل بيا په (۲۰۰) مخونو او دريم ځل په (۱۹۹) مخونو كې خپره شوې ده . (۵۲) قصه په لاندې بيتونو پيل كيږي :

اول حمد ثنا دهغه بې چګون دى    چې خالق دكل عالم كن فيكون دى
بيا درود په هغه پاک خير البشر دى    دلولاک تاج چې وركړى پاک اكبر دى

په همدې ترتيب روضو ګل مروت دخوارلسمې هجري پيړۍ داوايلو شاعر تير شوي دى . په شعر كې كله خپل نوم رضا خان هم راوړي . دى په قوم مروت او دبنو ضلعې دلكي مروت دتحصيل دګوركه كلي اوسيدونكى و . له دې كبله كله كله ( روضو ګل ګوركي ) هم ليكي .

نوموړى دوخت علوم لوستلي وواوپه خلكو كې په مولوى مشهورو . دى دنقشبندي طريقې پيرو واو دحضرت زكوړى مريد و . (۵۳) ده په پارسي او پښتو ډير اثار ليكلي دي . دده په اثارو كې ( جهدنامه ) دپښتو په منځنى بحر كې په دولس

 څپیزې مثنوي ویل شوې ده . دغه جهدنامه په (۱۳۳۰ هـ ق ) کال دلاهور په اسلامیه مطبعه کې په (۱٦) مخونو کې خپره شوې ده . (۵۴)

دغه یوه فوکلوري څیړنه ده چې شاعر دوجود دبیلو بیلو غړو دریږدیدلو خواص او نتیجې پکې ښودلې دي او په لاندې بیتونو شروع کیږي :

پس له حمده له صلوة درسول ، له فارسي نه زه پښتو وایم منقول
چې سکندر ذوالقرنین دغه کتاب ، ګرځاوه یې ځان سره لکه ګلاب

ملا نعمت الله ددیارلسمې هجري پیړۍ داواخرو او څوارلسمې هجري پیړۍ دپښتوشاعرانو څخه دی . نوموړی دکیسو په نظمولو کې ډیر لوی لاس لري . ملانعمت الله دفردوسي لقب ګټلی او دپښتو دقصصي او حماسي شعر استاد بلل شویدی . دده لویه استادي داده چې دنورو ژبو څخه مطالب په داسې قوت پښتو کوي چې دترجمې رنګ پکې نه لیدل کیږي . دی پخپلو منظومو آثارو کې سلاست او رواني ساتي او دهرې کیسې په نظمولو کې هیڅکله ظاهري ادبي ښیګنې ترمعنا نه قربانوي او هم معنا په ښه ډول افاده کولی شي . نوموړی دمثنوي په ډګر کې دخپل فکر نیلی په ډیره بیړه ځغلوي او داډګر په ډیر قوت او پیاوړتیا وهي . دملا نعمت الله منظوم اثار زیاتره دنظم دشکلي سکښت له پلوه په قافیه یې لحاظ دولس هجایي مثنوي ګڼې دي . (۵۵) دادی په لاندې ډول دده دمنظومو آثارو او دهغو بیلګو څخه په لاندې ډول غږیږم :

۱: ( درمجالس ) - داکتاب چې اخوند کبیر په خفیف بحر کې دمثنوي په بڼه ترده د مخه نظم کړی و ، ملانعمت الله په دولس څپیزه مثنوي نظم کړی او په دې باب دی پخپله وایې :

چې مې جوړ کړ داکتاب په ترتیب هسې ، چې به بل په دارنګ نه وي عجیب هسې
پخوانی عبدالکبیر چې دی ویلی ، خود پخپله هر طالب به وي لیدلی
هغه هم دی په ترتیب له ښه مضمونه ، ولې یاره دي وړه دده بیتونه

۲: الف لیلی :

دایو څلورتوکیز کتاب دی چې ارواښاد ملانعمت الله په دولس څپیزه خوږه مثنوي ژباړلی د... دبیتونو شمیر یې دولس نیم زرو ته رسیږي . ددې اثر زاړه چاپونه هم شته هغه نسخه یې چې حاجي محمد او عبدالخالق خپره کړې (۵۴۰) مخونه لري . دپیل بیتونه یې دادي :

ثن مې بیا قلم دعشق وایې سندرې ، په رښتیا دمینې پیبې ښې خبرې
غنچه زړه مې دهجران په اوجلبل شو ، په یوځل دبیتانه په ژرنده دل شو

۳: قصهٔ سو    هني مهنوال : داکیسه ملانعمت الله له پنجابي څخه په پښتو پـه ۱۲ څپیزه مثنوي رااړولې اودبیتونو شمیر یې ترشپږ سـووزیات دي . یـوه نسـخه یـې حاجي محمد خپره کړې چې ۲۴ مخونه لري او دپیل بیتونه یې دادي :

مشک افشان قلم زما لکه توتي نن    په چمن دعاشقي کوي مستي نن
په ورو ورو راته دعشق وايي بدلې    تماشې ته راوچتې شوې بلبلې

۴: ارایش محفل افغاني یا دخاتم طایي قصه :

ملانعمت الله دغه نوموړی اثر په دولس څپیزه مثنـوي کـې منظـوم کـړی چـې بیتونو شمیر یې له درو زرو څخه اوړي . په دې اثـر کـې دحـاتم طـايي دمیړانـې او سخاوت کیسې راغلي دي . دغه منظـوم اثـر پـه ۱۳۲۳ هـ ق کـې دچهجوسنگ او جیون سنگ له خوا په (۱۰۳) مخونو کې خپور شوي ؛ همدارنگه بیا په ۱۳۳۱ ه ق او ۱۳۶۸ ه ق کال په چاپ رسیدلی او ادبي تاریخچه او چاپي نسخې یې هم شته دغه منظوم اثر په لاندې بیتونو شروع کیږي :

الهی دمینې جام مې کړې نصیب    دوحدت په چمن گاه مې کړې قریب
دخپل فضل په بوستان مې ته توتي کړې    سرترپایه مې دعشق په اورستي کړې

۵: شاهنامه : دادملانعمـت الله بـل منظـوم اثـر دی چـې دفردوسـي دپارسـي شاهنامې څخه په ډیر قوت او قدرت په ۱۲ دولس څپیزه مثنوي په پښتـو ژبـاړلې ده دبیتونو شمیر یې لس زروتـه رسیږي دکتـاب ددرنـښت لـه ډاره یـې دلنـډیز څخـه کاراخیستې دي . ددې کتاب یوه نسخه په ۱۳۶۹ ه کـال کـې حـاجي عبدالرحمـن خپره کړې چې (۴۰۴) مخونه لري . دملا نعمت الله شاهنامه په لانـدې بیتونـو پیـل کیږي :

حمد ثنا دهغه خدای رحمان رحیم    په هرځای چې دده فضل دی عمیم
دی پادشاه دی دکل واړو پادشاهانو    دی دستگیر دی دخوارانو مظلومانو

۶: جنگ نامه رستم وسهراب پهلوان : دادفردوسي دپارسي شاهنامې یـوه برخـه ده چې ملانعمت الله پارسي منظومې شاهنامې څخه دپښتو په منظومه دولس څپیزه مثنوي اړولې او په پښتو ادب کې یې یوه  خـوږه منظومـه حماسـه زیاتـه کـړې ده . ددې منظومې دبیتونو شمیر دیارلس سوه دی . دغه منظومه کیسه حاجي محمـد او عبدالخالق خپره کړې چې ۵۶ مخونه لري . دپیل بیتونه یې دادي :

دتوحید دزړه بلبل مې نن په شور دی    دپاک رب دفضل باغ ورته سمسوردی
په قفسٔ دگناه که بندیوان دی    ده ته ور دفضل لرې دسبحان دی

۷: دمهتاب جان او بیگـ جان قصه چې په مکرزنان مشهوره ده :

دادمکر جنو ښځو منظومه قصه ده چې ملانعمت الله په ولس ځپیزه مثنوي منظوم کړې او د(۷۰۰) په شاوخوابیتونه دي. دغه کیسه په ۱۹۵۸ ع کال حاجي فضل احد خپره کړې ده ،دکیسې دپیل بیتونه دادي :

چې راوي اخبار داستان دمقالت دی | ولته داسې هغې کړي حکایت دی
چې په شهر دحلب یوه بوډۍ وه | دپیری دلاسه ملا دړې ترۍ وه

۸: قصص الانبیاء چې په جواهر الانبیاء مشهوره ده :

دغه دملا نعمت الله بل منظوم اثر دی چې په دولس ځپیزه مثنوي یې نظم کړی او دبیتونو شمیر یې (۷۵۰۰) ته رسیږي او دپیغمبرانو کیسې پکې راغلي دي . جواهر الانبیاء ګرملانعمت الله دمخه احمد خلیل چې په تیراهي احمد او دپجګی احمد او احمد اخوند خیل په نومونو شهرت لري منظوم کړی دی . ولې ملانعمت الله ځینې کیسې ورباندې زیاتې کړې او نظم یې ترهغه خوږ دی . ددې کتاب لومړی چاپي نسخه چې دشاه افضل په قلم ده ، دیوان چهجوسنګ په ۱۳۲۸ هـ ق خپره کړې چې ۳۲۷ مخه لري . دغه منظوم اثر په لاندې بیتونو پیل کیږي :

قل هوالله احد الله الصمد | حمد ثنا دې وي دهغه پاک احد
چې کف نه لري بې شکه لم یلد دی | هم رسول یې [په] تحقیق سره محمد دی

۹: جنګ نامه میر‌ تم معروف به جنګ مقاتل :

دادملانعمت الله یوه کوچنی حماسه ده چې په خلورسوو بیتونو کې په دولس ځپیزه مثنوي منظوم شوې او حاجي محمد او عبدالخالق خپره کړې ده . ټول شل مخه لري او په لاندې بیتونو شروع کیږي :

خدایه زړه مې په ثنا صفت بلبل کړې | ورپلاس دمحبت دباغه ګل کړې
په ګلزار یې دوحدت کړې مستانه | چې پرې تسل ستا دتوحید کړې افسانه

۱۰ : جنګ نامه حسنین وبي بي سکینه :

په دې منظوم اثر کې چې په دولس ځپیزه مثنوي ملانعمت الله نظم کړی دی. دکربلا دغم نه ډکه واقعه په سوز او درد انځوروي . دبیتونو شمیر یې ددیارلس سوه څخه اوړي . هغه نسخه چې په ۱۳۳۸هـ ق = ۱۹۱۹ م کې دیوان کهړک سنګ خپره کړې ده (۵۶) مخونه لري ؛ددې اثر دپیل بیتونه دادي :

په چغارخدایه زما دزړه بلبل کړې | ورپلاس ورته دخپلې مینې ګل کړې
غمژن زړه مې دخپل عشق په ښادي ښاد کړې | په صراط باندې مې تیرلکه دباد کړې

۱۱: دفتح خان کندهاري کیسه :

دپښتنو یوه ملي کیسه ده چې ملانعمت الله دپښتو نثر له مخې په ۱۲ څپیزه مثنوي اړولې ده . دبیتونو شمیر یې ددولس سوه څخه اوړي . هغه نسخه چې غلام مرسلین په ۱۳۰۳ هجري قمري په دهلي کې خپره کړې (۴۸) مخه لري .

دغه منظومه کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

| | |
|---|---|
| الهي بلبل دزړه زما گویا کړې | مشتغل ( یې ) روزوشب په حمد ثنا کړې |
| دوحدت په چمن کې مې قریب کړې | ستا دفضل په گلشن ( مې ) عندلیب کړې |

۱۲ : د موسي خان او گلمکۍ کیسه :

داهم دپښتنو یوه ملي کیسه ده چې ملا نعمت الله په دولس څپیزه مثنوي نظم کړې او ۹۰۰ بیته کیږي . هغه نسخه چې بختیار تاجر چاپ کړې ده ( ۴۰ ) مخه لري .

کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

| | |
|---|---|
| دوحدت په عاشقانو کې مې سیال کړې | هم ستي په دغه اور مې پروبال کړې |

۱۳ : باغ وبهار افغاني المعروف په چهاردرویش :

دادملانعمت الله بله منظومه کیسه ده چې له اردو څخه یې په دولس هجایي مثنوي نظم کړې ده . دبیتونو شمیر یې د ( ۲۰۰۰ ) څخه اوړي یوه نسخه یې دکتابونو تاجر محمد اکرم په ۱۳۲٦ هـ ق = ۱۹۰۸ ع کې خپره کړې ده . دغه نوموړې چاپي نسخه (۱۳٦) مخونه لري . دغه کیسه په لاندې بیتونو شروع کیږي :

| | |
|---|---|
| الهي جام مې دمینې په سرریز کړې | په طاعت په عبادت مې سحر خیز کړې |
| دوحدت په گلستان کې مې بلبل کړې | ثنا خوان مې په خوانچه دهریو گل کړې |

۱۴ : مجموعهٔ کسب نامه :

( کسب نامهٔ کلالان ، کسب نامه نجاران ولوهاران ، کسب نامه دوبیان . کسب نامهٔ نایان )

په پورتنیو کسب نامو کې یوازې کسب نامهء نایان په دولس څپیزه مثنوي نظم کړې ده باقي درې کسب نامې یې دپښتو په لنډ بحر کې دمثنوي په بڼه نظم شوې دي .

کسب نامه دنایانو د ۱۷ مخ څخه شروع کیږي او د ۲۱ مخ پورې دوام کوي دپیل بیتونه یې دادي :

| | |
|---|---|
| اول زه ثنا دخدای وایم په ژبه | بیا صفت دپاک رسول کوم طالبه |
| بیا بیان کومه دا چې بابا ادم و | له جنته چې راووت هغه دم و |

دغه مجموعه دکلالانو ، نجارانو ، لوهــارانو ، دوبيــانو او نايــانو دکسبونو پــه سوابقو فوکلوري معلومات لري او په نظم او نثر ليکل شوې يوه نسـخه يــې حــاجي فضل احد خپره کړی چې (۲۴) مخه ده.

۱۵: د" رعنا وزيبــا کيسه يــا شــهزادې ختــن جلاوطـن ! دااثـر دملانعمـت الله دوروستيو تاليفاتو څخه دی په ۱۳۴٦ ه ق کال کې چې اويا کلن و په دولس څپــيزه مثنوي نظم کړی‌دی. د (۳۳۰۰) بيتونو په شاوخوا کي لري . لومړنی چاپ يــې چــې حاجي فضل احد کړي دی (۱۰۸) مخونه لري دپيل بيتونه يې دادي :

الهي زما دزړه باغچه تازه کړې راته لرې دخپل فضل دروازه کړې
په امان مې دشيطان له وسوسو کړې ښکي په ماباران درحم په کالو کړې

۱٦: د تيمبو لا کيسه : داکيسه ملا نعمت الله په دولس هجــايي مثـنوي منظـوم کړې ده . دبيتونو شمير يې (۵۰۰) ته رسيږي . هغه نسخه يې چې ميا حاجي محمــد عبدالخالق او فضل المالک دپيښور دقصــه خوانــي بــازار تــاجرانو خپـره کـړې (۲۴) مخونه لري په ۲۲ مخ کې يې دمحمد دين په نامه غزلې شروع کيږي او تـر ۲۴ مـخ پورې دوام کوي . په ۲۴ مخ کې دمقصود پــه نـوم يوغـزل لـري . دکيسـې دپيـل بيتونه يې دادي :

راوي وايې چې په ملک کې دکشمير وپه قوم دښاپيرو کې يو اسير
عاليجا بلند اقبال والا همت وه دکشمير په ښاپيرو يې بار شاهت و

همدارنګه ميا عبدالحليم کاکا خيل خلويښت حديثوله له اردو څخــه دپښتـو پــه منځنی بحر کې په دولس څپيزې مثنوي منظوم ژباړلي او د ( وثيقهٔ آخرت ) نوم يــې پرې ايښی دی . (٥٦) ده دغه ژباړه په ۱۳۰۸ ه ق کې پای ته رسولی او پــه همـدې کال په هندو پريس کې دپياري لال په اهتمام او دغلام محمــد او محمدرمضـان پــه لګښت په (۳٦) مخونو کې خپره شوې ده . (۵۷)

" وثيقهٔ آخرت په لاندې بيتونو پيل کيږي" :

دالله په نوم شروع کړم چې رحمان دی په دنيا کې دی په هر چا مهربان دی
په قيامت به که رحمت په عالميانو په خاصه وو بندګانو مومنانو
پس له حمده له صلوهٔ زه بيان کړم چې خوشال پرې پښتانه اهل ايمان کړم
داخلويښت حديثه ښه صحيح کره دي چې راويان يې ټول دلمر په شان ښکاره دي
ترنبي يې رسيدلی سلسله ده په صلوهٔ سلام مي بيرته شوندې خوله ده

په همدې ترتيب سفيد شاه چې دختکو په اکوړه کې اوسيده وروسته بدرښو تــه راغی او دسيد غلام جان په جماعت کې يې امامتي کوله . نوموړی په ۱۲۵۷ ه کال

کې زیږیدلی او په ۱۹۰۹ = ۱۳۲۷ هـ ق کې مړشوی دی (۵۸) . دی یو عالم او ظریف شاعر و په ۱۳۱۷ ه ق کال کې یې د " هدایت الاعمي " په نوم یو کتاب دپښتو په منځنۍ بحر کې په دولس څپیزه مثنوي نظم کړی دی . دغه کتاب ځینې نور شعري فورمونه هم لري ،مګر بنیادي متن یې مثنوي دی . دده دغه منظوم اثر په ۱۳۱۹ ه ق کې دتهال سنګ له خواپه ۳۲ مخونو کې په لاهور کې چاپ شوي دی .

دپیل بیتونه یې دادي :

اول حمد وایم دپاک پروردګار — په هردم په هرقدم لیلُ النهار
بیا درود په محمد خیر الوراء دی — چې مبداء دکل جهان اعلی اولادی

همدارنګه امان ګجراني دخوارلسمې هجري پیړۍ داولې نیمایې خوږ ژبی پښتو شاعر تیر شوی دی . (۵۹) نوموړی په کیسي لیکلو کې لوی قدرت درلود . نوموړي شاعر څلور منظومې کیسې په پښتو ادب کې منظوم کړې دي .(۶۰) ددې څلورو کیسو څخه یوه دګل صنوبر کیسه ده چې دغزل - قصیدې او مثنوي په چوکاټ کې یې لیکلی او دکیسې دختمیدو پورې همدغه درې ډوله عروضي فورمونه تعقیب کړي دی . دغه قصه دده دمخه طالب رشید په ۱۱۹۴ هـ ق کې دپښتو په لنډ بحر کې دمثنوي په بڼه ویلې وه . امان ګجراني دغه کیسه داردو څخه په پښتو ژباړلې او دکیسې دنظمولو نیته داسې څرګندوي :

ما امان کیسه کړه خلاصه ماریکر و — فروري اتم تاریخ یې مقررو
سن پوره نولس سوه دوکاله ګوره — عیسوي سن چې یادیږي زما وروره
زه امان ګوجراني جوهر فروش یم — نه مشکنی ساتم نه خانه بدوش یم

دامان ګجراني پاتې درې منظومې کیسې دپښتو په منځنۍ بحر کې په دولس څپیزې مثنوي ویل شوې دي چې دهرې کیسې بیلګه په لاندې ډول راوړم :

الف : د شهزاده بهرام او ګل اندامه : منظومه کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

حمد ثنا وایم اول دپاک سبحان — بیا درود په پاک نبي آخرزمان
چې دنیا یې کړه دده په مخ اباده — شفاعت مې یې نصیب کړې بامراده

دغه منظومه کیسه دمیا حاجي محمد عبدالخالق له خوا په خورشیدعالم پریس لاهور کې په ۵۶ مخونو په ۱۹۶۶ ع کال کې چاپ شوې ده :

ب : د " ملک محمد ګیتی افروز " کیسه چې له اردو څخه یې په پښتو ژباړلې ده په لاندې بیتونو پیل کیږي :

حمد ثنا وايم اول دپاک سبحان بيا درود په پاک نبي اخر زمان
رب دنيا کړله دده په مخ اباده مناسب کول زموږ سره حياده

دکيسې دتاليف او ترجمې په برخه کې وايي :

په شمارديرشمه ورځ ددسمبر وه اوسن نولس سوه اوه نبه معتبروه
چې مې ختم دا قصه په پښتو کړله داردو نه مې پښتو ظاهر وله

دغه نوموړې کيسه دميا حاجي محمد او عبدالخالق له خوا په مقبول عام پريس لاهور کې په (٦٤) مخونو کې چاپ شوې ده :

ج : هزارحيف چې په فسانهء غم آمودمثوره ده :

دغه کيسه امان ګجراني له اردو څخه په ١٩١٢ ع کال کې په پښتو زباړلې ده . لومړی ځل په لاهور او دوهم ځل په پيښور کې چاپ شوې ده . دچاپ په برخه کې دپښتو کتاب ښود (٤٢) مخ کتلای شی . (٦١)

فسانه غم آمود په لاندې بيتونو پيل کيږي :

نن مې بيا دزړه بلبل ثنا ګويان دی سحرخيز دباغيچې دپاک سبحان دی
ګوناګون نغمې کوي په چغهار سروي مشتغل په لوی صفت دپاک اکبر ي

همدارنګه د ١٣٢٣ ه ق په شاوخوا کې دپيښور دوآبه کې چراغ دين دپښتو ژبې خوږ ژبی شعر تير شوی او دوخت په مروجه علومو کې دښو معلوماتو خاوند و . (٦٢) دده هغه منظوم اثار چې دپښتو په منځنۍ بحر کې په دولس څپيزې مثنوي نظم شوي دي په لاندې ډول دي :

١ يو کتاب چې څلور منظومې کيسې : ( قصهء شمشاد – قصهء دختر قاضي – کرامت حسنين – فقيربغداد) پکې راغلي دي، څلور واړه يې دشيخ عطار له يوه پارسي کتاب څخه دمثنوي په قالب کې په پښتو اړولې اوله ژباړې څخه يې په ١٣٢٣ ه ق کال فارغ شوې دی . (٦٣)

دنوموړی شاعر څلور واړه منظومې کيسې په يوه پښتی ( وقايه) کې دديوان کهرک سنګ اولال سنګ له خوا په (٤٤) مخونو کې دلاهور په کارونيشن مطبعه کې خپرې شوې دي (٦٤) اوس دنوموړی چاپي کتاب دهرې منظومې کيسې بيلګه ګرانو لوستونکو ته وړاندې کوم :

الف : دشمشاد قصه : دمنظوم چاپي کتاب داول مخ څخه شروع کيږي او تر ١٧ مخه پورې دوام کوي . نوموړې کيسه په لاندې بيتونو پيل کيږي :

دثنا خاوند زما هغه بادشاه دی هر بادشاه دده په درباندې ګدا دی
څوک روان کړي دايمان ډيوه په لاس څوک په کنده دجهنم کې کړي راخلاص

ب : اغاز داستان دختر قاضي: دنوموړی چاپ کتاب له ۱۸ مخ څخه پیل او تر ۲۳ مخ پورې دوام کوي دکیسې دپیل بیتونه یې دادي :

اول ژبه خوږم په نوم درب چې مې سرکاندي دزړه واړه مطلب
چې په اسم مې درب قلم پکښ دی په بدن کې مې زړګی دننه یخ دی

ج : کرامت حسنین : دغه منظومه دولس څپیزه مثنوي دچاپي کتاب د ۲۴ مخ څخه پیل تر ۳٦ مخه پوري رسیږي دکیسې دپیل بیتونه دادي :

زما خدای دی هسې رنګه لاشریکه په صراط یې جوړه کړله لارباریکه
په زمین که په آسمان که په هر ځای دی داچې څه دی دا واړه دخدای دی

د : فقیر بغداد کیسه : دغه منظومه دولس هجایي مثنوي له ۳۷ مخ څخه شروع کیږي او د ۴۴ مخ پورې رسیږي . دپیل بیتونه یې دادي :

خدایه ستا دصفت باغ مې په نظر شو زما زړه لکه بلبل پکې راسرشو
تا آسمان قایمقام پاس په هواکړ بیا په ستورو دې نیلی آسمان زیبا کړ

۲: ګلدستهء حیدرې : دغه منظومه دولس هجایي مثنوي چې دحضرت علي په جنګ نامه مشهوره ده ،یوه فوکلوري کیسه ده چې دګل محمد او محمد اکرم له خوا په ۱۲۸ مخونوکې په ۱۹۱۰= ۱۳۲۸ ه ق کال دلاهور په اسلامي پریس کې چاپ کړیده . (٦۵) دامنظومه فوکلوري کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

اول نوم اخلم درب په خپل زبان شکرداچې یې پیداکړم مسلمان
په دوه حرف یې پیدا زمکه آسمان کړه مقرریې په هر چافرشته ګان کړه

۳: د " اله دین چراغ ": دغه یوه خیالي کیسه ده چې په چین کې دیوه درزي دزوی او دمصر دیوجادوګر حال بیانوي دچراغ دین دالله دین کیسه په ۸۰ مخونو کې په ۱۳۴۵ ه ق کال دتاجرانو له خواپه لاهور کې چاپ شوې ده (٦٦) . دپیل بیتونه یې دادي :

راوي کړی روایت په خپل زبان دی ما فقیر ترې نقل کړي په داستان دی
راوي زر قلم په لاس کې ورته سم کړه داقصه داله دین په نن رقم کړه
ما قلم که ورته قط په چاقو باندې قصه کړم داله دین دخلکو وړاندې

همدارنګه غلام احمد دپېښور دنوښار اوسیدونکی په ۱۳۲۵ ه ق کال کې دشیخ رحمکار کاکا صاحب علیه الرحمه مناقب دپښتو په منځنی بحر کې په دولس څپیزې مثنوي په پښتو منظوم ویلی دی . (٦۷) دکاکا صاحب مناقب په ۱۴ مخونو کې ددیوان کهرک سنګ او جګت سنګ له خواپه لاهور کې چاپ شوي او چاپ نسحه یې دښاغلي رفیع په ځاني کتابتون کې شته .

دغه منظومه په لاندې بيتونو پيل کيږي :

په نامه دهغه خدای مې دابيان دی — چې يو نوم يې په نومونوکې سبحان دی
چې فرمان يې په قلم باندې دکښو شو — زر په سرباندې روان په ځای دپښو شو

دتاليفولو نيټه يې داسې څرګندوي :

مناقب [کتاب] خلاص په ديرشم درمضان — عين وخت دماريګروښه عيان
سنه ديارلس سوه وه پنځه ويشت کاله — ماوی بس که مه ليکه له دې احواله

همدارنګه عبدالکريم مرباتي دملا امام ګل زوی دغزنې د (جامراد) اوسيدونکی په قوم مرباني پښتون و چې داعليحضرت امان الله خان دواکمنې په وخت کې يې په غزني کې ژوند کاوه . عبدالکريم مرباني دپښتو خوږ ژبی شاعر وپه ۱۳۴۰ هـ ق کال يې دورقه او ګلشاه قصه له پارسي نه په روانه پښتو ژباړلې ده. دغه کيسه دده دمخه ملا احمد جان دمرداني هم نظم کړې ده ، دعبدالکريم دغه منظوم اثر دژباړې نه وروسته په ۱۳۴۶ هـ ق کې دمولوي غلام محمد ملتاني په مرسته دلاهور په کريمي پريس کې په ۹۶ مخونو کې خپور شوی دی . چاپي نسخه يې دښاغلي حبيب الله رفيع په ځاني کتابتون کې موجوده ده .

دبيتونو شمير يې تر دووزرو پورې رسيږي او دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپيزې مثنوي ويل شوی دی . دکيسې په پيل کې حمد ، نعت ، منقبت ، دوخت دباچا ستاينه دغزني دحاکم يادونه او ورپسې په کيسې پيل شوی ، دکيسې په پای کې دخپل ځان معرفي او دځينو شاعرانو يادونه کوي، وروسته دغزني اوليا ستايي ، اوپه مناجات خپله کيسه ختموي. دعبدالکريم مرباني کيسه په لاندې بيتونو پيل کيږي : (۶۸)

بسم الله ابتدا کړم په نام درب — حمد ثنا وايم درب په روزشب
چې رحمان دی او رحيم دی هم غفار — بل حافظ دی‌او ناصر دی هم ستار

دپای بيتونه يې دادي :

اوبيا وبښه تمام اهل اسلام — خصوصاً اقربای هم الکرام
خود به پاتې شي سياهي په کاغذباندې — هم (به) شي عبدالکريم ترخاورولاندې

همدرانګه اسحق دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپيزې مثنوي د شهزاده جهانګيراوشهزادې ګل رو په نوم يوه قصه منظوم کړې ده . نوموړی شاعر په سرحد کې ژوند کاوه . او خپله کيسه يې په ۱۹۲۲ ع = ۱۳۴۰ هـ ق په نظم کړې ده . دی په يوه بيت کې دخپلې منظومې کيسې دتاليف نيټه داسې ښيي :

سنه انیسوبائیس کې خلاص کتاب شو* له دې حال ځینې خبر چې هر احباب شو

دغه منظومه کیسه ددیوان کهرک سنګ او لال سنګ له خواپه مطبعهٔ صابر الکتریک پریس لاهور کې په ٦۴ مخونو کې خپره شوې ده . چاپي نسخه یې ښاغلي حبیب الله رفیع په ځاني کتابتون کې شته . دپیل بیتونه یې دادي :

دثنا لایق مې هغه لمیزل دی چې جهان یې پیداکړی په یو ځل دی
ده چې کن کړ فیکون واړه جهان شو مخلوقات پکې همه واړه روان شو

عبدالخالق اخلاص دملاجان اخوند زاده زوی په خته ساپی دبرچغه سرای د ربو وز کلی اوسیدونکی په ۱۳۱۹ ه ق کال کې درجب المرجب په میاشت دجمعې په ورځ په دیوز کلي کې زیږیدلی دی ، پلاریې عالم سړی و . دخپل زوی له پاره یې داسې نوم وټاکه چې درجب المرجب دحروفو په یو ځای کولو سره دجمل په حساب دده دتولد تاریخ جوړیږي اخلاص پارسي او عربي کتابونه له خپل پلار څخه او حدیث او تفاسیر یې بل ځای لوستی دی . دی صوفي مشربه سړی و . بې تکلفه ژوندیې ډیر خوښ و . دپښتو ادب میني او علاقې پښتو شعر ویلو ته مجبورکړ. ده په ۱۳۰۳ ش کال په دولتي چارو کې لومړی قدم کښیښود او دنظامي کندک کاتب مقرر شو او دکندکمشری تر رتبې ورسید . په ۱۳۱۰هـ ش کال په رسمي توګه دپښتو ټولنې غړی وټاکل شو . وروسته بیا دمشرقي اتحاد داخبار معاون شو څه موده وروسته بیرته دپښتو ټولنې دلغاتو څانګې دمدیر په حیث مقرر شو تردې وروسته یې له رسمي چارو څخه لاس اخیستی دی.

اخلاص ډیر منظوم او منثور آثار لري چې دکابل په مجلو ، اتحاد مشرقي او دهیواد په نورواخبارونو کې خپاره شوي دي . (٦٩)

ښاغلي حبیب الله رفیع په پښتو ژبې او ادب مین غښتلي لیکوال داخلاص یوه زړه چاپي منظومه پښتو حماسه په ۹۴ مخونو کې پخپل هاند او کوشش په لاس راوړې ده . چې دتالیف نیته یې ( ۱۳۰۲= ۱۳۴۱ هـ ق ) کال دی . نوموړی زړه چاپي نسخه په یوه پښتی ( وقایه )کې دوی منظومې د ( استقلال ) او ( ګلشن رنګین ) په نومونو کې لري . چې دلومړی منظومې ویونکی عبدالخالق او ددوهمې منظومې ویونکی سید عبدالغفار نامي دی .

په دې زړه چاپي نسخه کې ځای په ځای ... مقامونه ، او رباعي هم شته . داستقلال ترعنوان لاندې منظومه دقافیوي رعایت له مخې دولس څپیزه مثنوي ده دزړې چاپي نسخې له اول مخ څخه شروع کیږي او تر ۷۹ مخ پورې دوام کوي

دغه منظومه حماسه داستقلال په جهاد کې دکونړ او چترال محاذ کې چې توریالیو پښتنو دمیرزمانخان په مشري پکې ګډون کړی و، دهغوی دتورې او میړانې څه بحث کوي چې انګریزي استعماري دولت ته یې خوله ماتونکي ګذارونه ورکړي و د ( ګلشن رنګین ) منظومه دزړې چاپي نسخې د ۷۹ مخ څخه شروع کیږي او تر ۹۴ مخ پورې دوام کوي یوازې ۷۹ مخ یې ۱۴ څپیزه مثنوي او نوره پاتې برخه یې دولس څپیزه مثنوي ده .

دسید عبدالغفار په نوم یو شاعر په پښتانه شعرا ګړیم ټوک ۱۳۴۲ کال ۲۷۷ ګڼه ۸۱۲ مخ کې معرفي شوی چې تر ۱۳۳۵ هـ ش پورې ژوندی واو دبر کونړ داسمار ، په شال نومي کلي کې زیږیدلی او هلته یې ژوند کاوه. له یوې خوا دعبدالخالق اخلاص معاصراو له بلې خوا داسمار دسرحدي ولسوالی سړی و . چې هستوګنځی یې دغزا محل ته نژدې و ، کیدای شي چې دګلشن رنګین شاعر دې همدغه دشال سید عبدالغفار وي .له بلې خوا داوسنی لیکوال په لومړی ټوک کې دعبدالخالق اخلاص په آثارو کې د ( ګلشن رنګین) په نامه دیواثر یادونه شوې ده خودکتاب له لیدلو څخه څرګنده شوه چې ګلشن رنګین دسید عبدالغفار دی چې دعبدالخالق اخلاص له ( استقلال) سره یوځای په یوه وقایه کې خپور شوی دی . (۷۰) زه ددې تاریخي واقعیت درابرسیره کولو او څرګندولو ویاړ او افتخار ښاغلي رفیع صاحب ته دزړه له کومې تبریک وایم او هغه بیلګې چې ددواړو منظومو یې ماته راکړي دي دمعنوي مرستې مننه کوم .

دادی د ( استقلال ) دمنظومې ۱۲ هجایي حماسي او ( ګلش رنګین ) بیلګې په لاندې توګه راوړم :

الف : داستقلال : منظومه دولس هجایي مثنوي په لاندې بیتونو دجهاد برخې ته رارسیږي :

چې دچا طالع وي نیکه له ازله　　　　خدایږو دغه معلومیږي له اوله
په جبین کې دهر چا طالع وي کښلې　　　　دانسان دي معلومیږي راشه دلې

ب : د( ګلشن رنګین ) دولس څپیزه مثنوي په لاندې بیتونو شروع کیږي :

نوابي دې مبارک شه لویه خانه　　　　زار قربان شم ستاله ټوله خاندانه
زه یو عرض دتقصیر لرم وتاته　　　　که دا عرض مې قبول کړې عالي ذاته

دلبر جان مومند دخوارلسمې پیړۍ اواسطو یو خوږ ژبی شاعر تیر شوی دی . نوموړی دپیښور په شاوخوا کې دمومندو دټبې دبروسوړیزکلي اوسیدونکی و . ده بزګري کوله او دشعر ویلو روانه طبعه یې درلوده .

دلبرجان مومند دسبزپري - زرد پري او دسراند يب دشهزاده کيسه د ( ګلدستهٔ دلبري ) په نامه دخپلو ملګرو فضل ودود اوبرهان الدين په غوښتنه له يوه پارسي کتاب څخه دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپيزې مثنوي په خوږه ژبه اړولې ده . دلبرجان په کيسه ليکنه کې دملانعمت الله پيرو ښکاري . او دکيسې دهرې برخې تر خلاصيدو وروسته دوه يا درې تمهيدې بيتونه راوړي چې ډير تاثر ناک وي . دی ځای په ځای په کيسه کې غزلې چاربيتې لوبې - لنډۍ له موضوع سره مناسبې راوړي چې دکيسې خوند او مزه نوره هم زياتوي .

دلبرجان ( ګلدستهٔ دلبري ) په ۱۳۴۹ ه ق کال ددوهمې خور ( ربيع الثاني ) په ۲۹ نيټه پای ته رسولې ده . (۷۱)

( ګلدسته دلبري ) دعبدالسلام له خوا په ۱۵۲ مخونو کې په محمدي پريس لاهور کې خپره شوې ده . (۷۲)

ګلدستهٔ دلبري په لاندې بيتونو پيل کيږي :

نخلبندد دفراديسوداقمار نقشبند دقراطيسو داخبار

دلته ايښی يونهال دروايت دی مرتسم هسې قرطاس د حکايت دی

او په دې بيتونو پای ته رسيږي :

دربيع الثاني وه يو کم ديرشمه چې قلم زما فارغ شوله رقمه

ديارلس نيم سوه يوکم سنه هجري وه ختمه شوې ( چې ) ګلدستهٔ دلبري وه

ملا احمد جان دپېښور دواوې په ( مردانه ) کې ژوند کاوه ، نوموړی دخوارلسمې هجري پيړۍ داواسطو شاعر تير شوی دی . ده ډيرې قصې دمثنوي په قالب کې نظم کړې دي . نوموړي ته به دپېښور دقصه خوانی کتاب فروشانو دقصو نظمولو فرمايش ورکاوه ، ده به قصې نظمولې او تاجرانو به چاپولې او څه حق الزحمه به يې ده ته هم ورکوله .(۷۳)

دده هغه منظوم آثار چې دپښتو په منځنې بحر کې په ۱۲ څپيزې مثنوي ويل شوي دي په لاندې ډول دي :

۱: قصه ( شهزاده شيرويه ) په دغه کيسه چې په سمين عذاره ملکه سره مشهوره ده ، دغه کيسه ددوومينانو دمينې او دمينې دستونزو کيسه ده چې ملا احمد جان په دولس څپيزې مثنوي نظم کړې ده .

دغه منظومه کيسه دمحمد صادق له خواپه ۱۳۵۰ کې دلاهور په رفيق عام پريس کې په (۹٦) مخونو کې چاپ شوې ده. (۷۴) دغه کيسه په لاندې بيتونو شروع کيږي :

افتتاح کړم په نامه دهغه پاک | چې بي ستنې ودرولې دي افلاک
ګرځولې پکې ده ډیوه دسمر | ټول جهان دی په دې باندې منور

۲: قصه ( شهزاده بهرام ګورابن شاه فارس وپري حسن بانو) :

دغه یوه فوکلوري کیسه ده چې ملا احمد جان په دولس هجایي مثـنوي نظـم کړې ده . دغه منظومه دحاجي فضل احد له خوا پـه ٦۴ مخونـو کـې پـه حمیدیـه الکتریک پریس پیښور کې چاپ شوې ده . (۷۵)

دثنا لایق زما رب الجلیل دی | چې یخ کړونکی دآتش دخپل خلیل دی
اوریې کړ په ابراهیم باندې ګلزار بنه | خپل قدرت یې په خوشانې کړ اظهار بنه

۳: قصهٔ ( شهزاده قمر الزمان ) :

په دغه کیسه کې دقمرالزمان دمینې او ژوند داستان راغلی دی . دغه کیسه مـلا احمد جان په دولس څپیزه مثنوي ویلې او دعبدالحکیم او محمد جاوید له خواپـه ۱۳٦۹ کال په ۷٦ مخونو کې دپیښور په منظور عام پریس کې خپـره شـوې ده . (۷٦) دکیسې دپیل بیتونه دادي :

دثنا لایق زما هغه بې نیاز دی | چې دی هر مشکل کشا او سبب ساز دی
په اوبو کې داوبو مخلوق ساتینه | سمندر له روزي اور کې ورکوینه

۴: ( طوطي نامه ) : دغه کیسه هم نوموړی شاعر پـه دولـس څپـیزه مثنوي کـې منظوم کړې ده. یوه نسخه یې چې دمیا حاجي محمد ، عبدالخـالق او فضل مـالک دپیښور دقصه خوانی بازار تاجرانو په سرحد الکترونیک پریس پیښور کې خپره کـړې ( ۸۰) مخونه لري . (۷۷)

دغه منظومه کیسه په لاندې بیتونو شروع کیږي :

ژرشه پورته شه قلمه طوطي څیره | دقصو په باغ کې وګرځه چاپیره
دقصو په باغ کې وکړد هر خواسیل | خوګلونه راله راوړه دچانبیل

۵: ( قصهٔ شهزاده بلند اقبـال وشهزادی قمر جبینـه ) : داهـم دنومـوړي شـاعر منظومه کیسه ده . چې په دولس څپیزه مثنوي یې په نظم ویلې ده . یوه نسخه یـې حاجي محمد عبدالخالق او فضل مالک په حمیدیه پریس پیښور کې خپره کړې چې (۴۸) مخه لري . (۷۸)

دغه منظومه کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

اول ووایه ثنادخاوند پاک | چې بې ستنو یې ودرولی دی افلاک
مخلوقات یې پیدا کړی رنګ په رنګ دي | خوک ښایسته دي په جوسه وخوک بدرنګ دي

۶: ( قصهء شهزاده فلک نازوشهزاده خورشید آفرین ) : دغه کیسه هم په دولس ځپیزه مثنوي نظم شوې ده . یوه نسخه یې حاجي محمد - عبدالخالق وفضل مالک دپېښور دقصه خواني تاجرانو دلاهور په مقبول عام پریس کې خپره کړې ده . چې ۲۳۲ مخونه لري . (۷۹)

قصه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

دثنا لایق مې هغه پاک متان دی — چې بي ستنو ودرولی پاس آسمان دی

په هوایې پاس آسمان دی ودرولی — فرش دزمکې په اوبو دی غوړولی

۷: ( قصه شهزاده ورقه گلشاه ) : دغه کیسه هم په دولس ځپیزه مثنوي کې نظم شوې ده . یوه هغه نسخه یې چې میا عبدالخالق په ۱۳۵۸ کې دپېښور سرحد الکتریک پریس کې خپره کړې (۶۴) مخه لري . (۸۰) دکیسې دپیل بیتونه یې دادي:

بسم الله کوم شروع په نوم دخدای — چې هغه دی دهر چامشکل کشای

الرحمن دی بخشنده دګنهکارو — الرحیم دی مهربانه په خوارزارو

۸: ( قصه شهزاده ممتاز) : دغه کیسه دشاعر دنورو کیسو په شان په ۱۲ ځپیزه مثنوي نظم شوې ده . یوه هغه نسخه یې میر محمد دپېښور دقصه خوانی بازار تاجر په مطبعه اسلامیه ستیم لاهور کې په ۱۳۲۹ کې خپره کړې ده . (۸۱)

دپیل بیتونه یې دادي :

اول وایم حمد ثنا دکردګار — چې خور رور باندې رواکړې لورپه پلار

رور په خور باندې رواکړی خورپه رور — اوبیا دواړه وي پیدادیوې مور

همدارنګه راحت الله چې په راحت زاخیلي شهرت لري دپښتو ادب کې دخوارلسمې هجري پیړۍ په دوهمه نیمایي کې دپښتو خوږ ژبی شاعر تیرشوي دی. (۸۲)

نوموړی دسید قریح الله زوی دی چې د ۱۳۰۴ هـ ق کال بزرګې د میاشتې په خلورمه دنوښار په یوه کلي زاخیل کې زیږیدلي او په ۱۳۴۲ هـ ش = ۱۳۸۲ هـ ق کال مړ شوی دی . ده دتحصیل ددورې نه وروسته دخپل ورور دمړینې دغمجنې پیښې نه وروسته په شعرویلو لاس پورې کړ . نوموړی ډیر آثار لري . دده له منظومو آثارو څخه چې دپښتو په منځني بحر کې یې په دولس ځپیزې مثنوي ویلې ده د سیف الملوک کیسه ده په دغه منظومه کیسه کې ځینې نور شعري فورمونه، لکه غزلې ، او قصیدې ځای په ځای هم راغلې دي .

دده دغه منظومه کیسه تر اوسه دوه ځلې چاپ شوې ده . لومړی ځل په ۱۳۳۰ ه کال په (۲۰۰) مخونو کې په لاهور او دویم ځل په پېښور کې چاپ شوې ده.(۸۳)

دده منظومه کیسه په لاندې بیتونو پیل کیږي :

ده شروع په نوم دهغه پاک سبحان | چې مالک دی هم دکون هم دمکان
دی خالق صانع ددواړو جهانونو | دی بخښوونکی دی دواړو ګناهونو

اوپه دې بیتونو پای ته رسیږي :

له راحت نه داسې درومي خپل جانان | ته به وایي هدونه په جهان

میر حیدر چې تخلص یې ناظم دی په ۱۲۷۷ هـ ش کال په کټواز کې زیږیدلی . نوموړی دکندهار ولایت دارغنداو په جوې لاهور کې اوسیده ، پلار اونیکه یې هم شاعران تیر شوي دي . ده ډیر آثار منظوم لیکلی چې دلیکل شوو آثارو دبیتونو شمیر یې تقریباً شپیتو زرو بیتونو ته رسیږي . ده ذافغانستان تاریخ داسلام دمخه بیاد امیر شیر علیخان تر زمانې پورې منظوم لیکلی دي . یوازې دغوریانو او ګورګانیانو دورې ترې پاتې دي . میر حیدر ناظم دغه نوموړی منظوم تاریخ په دیرشو کلونو کې پای ته رسولی او په اتو ټوکو کې یې راټول کړي دي چې دغه منظوم تاریخ اته قلمي ټوکه دافغانستان دعلومو اکاډمی په کتابخانه کې موجودې دي . (۸۳)

دغه اته ټوکه په لاندې ډول دي :

۱ دافغانستان تاریخ مخکې داسلام څخه لومړی ټوک .
۲ دافغانستان تاریخ مخکې داسلام څخه دویم ټوک.
۳ په افغانستان کې داسلام دظهور تاریخ دریم ټوک .
۴ دافغانستان د ۱۹ پیړی تاریخ څلورم ټوک .
۵ داحمدشاه بابا – میرویس نیکه تاریخ پنځم ټوک .
٦ دافغانستان تاریخ پښتو شاهنامې شپږم ټوک .
۷ پښتو شاهنامه یاد افغانستان منظوم تاریخ اووم ټوک .
۸ دافغانستان منظوم تاریخ تیمورشاه، زمان شاه اتم ټوک .

دقلمي نسخې داول ټوک په لومړی صفحه دناظم په قلم پـه سره خـط بـاندې داټوټوکو دبیتونو شمیر ( ۳۵۰۰۰) ښودل شوی دي . دغه پورتني منظوم اتـه ټوکـه تاریخونه دنظم دشکلي سکښت له مخې دپښتو په منځني بحر کې په دولس څپیزې مثنوي منظوم شوي دي زه یوازې دلومړي ټوک څو دپیل بیتونه دبیلـګې پـه تـوګه راوړم او دنورو ټوکونو دنومونو په یادونو اکتفاء کوم . لومړی ټوک په لانـدې بیتونـو پیل کیږي :

بشروو فکري په دې خبره وراندې | چې دخیال فکر په زور په مرسته باندې
په یو شي چې به خیال راغی دانیک بخته | بیا به سوساعی چې بل ګام کښیښږدي مخته

مغلقات دلرغون ژوند په خان حاصل کړي　　له دې وروسته به په خان خيال دکامل کړي
له يوزرو بيا تر شپږو زرو پورې　　ددې ميان توره پرده که به يو لوري

مرحوم عبدالخالق خليق دحافظ عبدالحق زوی دمحمد مسعود لمسی په خته خټک پښتون چې په ۱۳۱۳ هـ ق کال کې ماڼکي شريف کې زيږيدلی واو په ۱۳۵۶ هـ ش = ۱۳۹۷ هـ ق کال يې له دې فاني دنيا څخه دتل له پاره سترګې پټې کړې . نيکه يې دسوات دمرشد ميا عبدالغفور صاحب مريد و .

مرحوم خليق له ماڼکی نه پېښور ته راغی او په پېښنو رکې يې دکتاب پلورلو تجارت کاوه .ده په کوچنيوالي دوخت مروجه علوم په مختلفو ځايونو کې دبېلو بيلو کسانو څخه لوستی دی نوموړی پښتو ژبې قوي ليکوال او شاعر تير شوی دی.

مرحوم خليق صاحب د ( زه او زما زمانه ) ترعنوان لاندې يو کتاب په پښتو ژبې په منځني بحر کې په دولس څپيزې مثنوي منظوم کړی دی . دغه کتاب ۱۶۰ مخونه لري ، چې شپږ لومړنی مخونه يې منثور او دکتاب دپای دوه مخونه يعنې ۱۵۹-۱۶۰ مخه يې غزلې دي . نورکتاب دنظم دشکلي سکښت له مخې په منځني بحر کې دمثنوي په بڼه په نظم ويل شوي دی .

مرحوم خليق په دې منظوم کتاب کې دخپلې کورنۍ مفصله معرفي ، هغه پيښې چې دده په حيات کې منځ ته راغلې او هغه ناخوالې چې دی ورسره په ژوند کې مخامخ شوی دی دهغو څخه مفصل حکايت کوي . (۸۴)

دخليق صاحب دغه منظوم اثر په ادارهٔ اشاعت سرحد پېښور کې په ۱۳۸۷=۱۹۶۸ هـ ق چاپ شوی دی.

دادی دده دکتاب ( زما دمشرانو او کورنۍ حالات ) ترعنوان لاندې څوبيتونه دبېلګې په توګه راوړم :

زه په خته يم پښتون په ذات خټک　　دقبلې په لور آباديم داټک
اکوړي کې مې ميشته وومشران　　دوی نيکان وو عالمان وو صالحان
محمد مسعود صاحب زما نيکه و　　په سيرت او په صورت له ډيرو ښه و
دسکهانو بادشاهي وه هغه ان　　چې ظلمونه يې کول په مسلمان
چې دملک مسلمانان ترې شوډير تنګ　　نوېې وکړه فيصله چې وکړي څنګ

او دکتاب دپای بيتونه يې د (آخري سلام ) تر عنوان لاندې دادي :

زه سلام وايم په هغه محبانو　　په هغو خپلو خپلوانو او يارانو
چې زې خوښ يم او زه ډير ورته ګران　　په ماګران دي زه ددوی يم قدردان
خصوصاً چې چا دملک کړی خدمت وي　　دپښتو ژبې سره يې محبت وي

ننګ یې کړی په وطن او پښتون قام وي — ورسره یې خدمت کړی داسلام وي
چې خوک مړ وي دوی دې خدای کاندي مغفور — اوژوندی دې خدای همیش لري مسرور
په آخر کې عفوه غواړم له مولانه — زه پخپلو ګناهونو یم پښیمانه
خدایه ته زما نصیب خپله رضا کړې — سرخرومې په عقبی اوپه دنیا کړې

## مآخذونه :


(۹) - حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعرا، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ ش کال چاپ ، ۹۶-۹۷ مخونه .

(۱۰) - ختک ، خوشال خان ، سوات نامه ، دافغانستان دعلوموااکاډمی کابل ، ۱۳۵۸ش کال ، (دپوهاند حبیبي په سریزه او څرګندونه ).

(۱۱) - ختک ، خوشال خان ، بازنامه ، پښتو ټولنه ، کابل ، ۱۳۲۲ش کال( دپوهاند رښتین په تصحیح او اهتمام ).

(۱۲) - ختک سکندرخان ، لیلی ومجنون، دافغانستان دعلومو اکاډمی ، کابل ۱۳۵۸ش کال ، ۱-۲۰ مخ پورې ددوست شنواري په سریزه. همدارنګه وګ: رفیع ، حبیب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۹ش کال، ۳۲۵-۳۳۴ مخونه .

(۱۳) - حبیبي ، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعرا، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ ش کال ، ۳۵۴-۳۵۵ مخونه .

(۱۴) - حبیبي، پوهاند عبدالحی ، پښتانه شعراء لومړی ټوک ، کابل ۱۳۲۰ش کال ، ۱۸۶-۱۸۸ مخونه .

(۱۵) - حبیبي پوهاند عبدالحی پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ش کال، ۲۳۲-۲۴۲ مخونه .

(۱٦) - خلیل ، همیش ، ورکه خزانه ، لومړی ټوک ، پېښور ، ۱۹٦۰م کال ، ۲۳۴مخ .

(۱۷) - وګ د " شاه ګدا " پېښور چاپي نسخې ، ۴۸ مخ .

(۱۸) - رفیع ، حبیب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ش کال ، ۷۸۷-۷۸۸ مخونه ، ۱۳۰٦ پرله پسې نمبر.

(۱۹) - دغه کلی اوس هم په همدې نامه دکندهار ختیځ ته دشپږو میلو په فاصله دکابل کندهار دلوی واټ په غاړه موقعیت لري . وګ

هوتک ، محمد ، پټه خزانــه ، کـابل پوهنتـون ، ۱۳۵٦ ش کـال ، د ۷۵مـخ پاېلیک .

(۲۰) - هوتک ، محمد ، پټه خزانه ، کابل پوهنتون ، ۱۳۵٦ش کـال ، ۷۴-۸۴ مخونه .

(۲۱) - رشـاد،پوهـاند عبدالشـکور ، دځمکنـو میـاعمر (رح) کـابل ، ۱۳٦۰ش کال، د ۴۵ مخ پاېلیک .

(۲۲) - وګـ دپورتني اخځ ۴۵-۵۰ مخونه .

(۲۳) - حبیبي ، پوهـاند عبدالحـی ، پښتانـه شـعراء ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ش کال ، ۳۵۱-۳۵۵مخونه.

(۲۴) - رفیع ، حبیب الله ، پښتو پـانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ ش کال ، ۷۷۰مخ ، ۱۲۷۹ پرله پسې نمبر.

(۲۵) - پښتو آریانا دایرة المعارف ، دیارلسم ټوک ، کابل ۲۲۵۵ مخ .

(۲٦) - رشـاد ، پوهـاند عبدالشـکور ، دځمکنـو میـاعمر(رح) ، کـابل ۱۳٦۰ش کال ، ٦۹-۸۱ مخونوپورې .

(۲۷) - وګ: دپورتنی اخځ ۷٦ مخ .

(۲۷)- رښتین ، پوهاند صدیق الله ، پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، کـابل ۱۳۲۱ ش کال ۴۳۷-۴۴۲ مخونه.

(۲۸) - پښتو ټولنه ، پښتانه شعراء ، دریم ټوک کـابل ، ۱۳۴۲ ش کـال ۷۱٦ مخ .

(۲۹) - رفیع حبیب الله ، ادبي ستوري ، لومړی ټوک ، کـابل ، ۱۳۵۳ ش کال ، د ۹۸ څخه تر ۱۰۰مخونوپورې .

(۳۰) - هیوادمل ، زلمی ، فرهنګ زبان وادبیات پښتو ، کابل ، ۱۳۵٦ ش کال ، ۹ مخ .

(۳۱) - رفیع ، حبیب الله ، پښتو پانګه ، لومـړی ټوک ، کـابل ، ۱۳۵۴ ش کال . ۹۴-۹۵ مخونه ، ۳۰٦پرله پسې نمبر.

(۳۲) - رښتین ، پوهـاند صدیـق الله ، پښتانـه شـعراء ، دوهـم ټوک ، کابل ، ۱۳۲۱ش کال ۴۹٦-۴۹۷ مخونه.

(۳۳) - (۳۴) - هیوادمل ، زلمی ، فرهنګ زبـان وادبیـات پښتـو ، ۱٦ مخ ، همدارنګه دبشپړتفصیل او وضاحت لپاره وګ:کابل مجله ، دریمـه ګنه

۱۳۶۰ش کال ، " مولوی احمددتنګي " ترعنوان لانـدې دښاغلـي بريـښ مقاله .

(۳۵) – هيوادمل ، زلمی ، فرهنګ اوادبيات پښتو ، کابل ، ۱۳۵٦ کـال ، ۱۰ مخ .

(۳٦) – رفيع ، حبيب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ ش کـال ۷۳۸ مخ . ۱۲۲٦ پرله پسې نمبر .

(۳۷) – رفيع حبيب الله ، پښتو پانګه ، دوهــم ټوک ، کـابل ۱۳۵٦ ش کـال ، ۷۴۰ مخ ، ۱۲۲۸ پرله پسې نمبر .

(۳۸) – رفيع ، حبيب الله ، پښتو پانګه ، دوهــم ټوک ، کـابل ۱۳۵٦ ش کـال ۷٦۵ مخ ، ۱۲٦۹ پرله پسې نمبر .

(۳۹)-رفيع ، حبيب الله ، پښتو پانګه ، دوهــم ټوک ، کـابل ۱۳۵٦ ۷۵۷ مـخ ، ۱۲۵۷ پرله پسې نمبر .

(۴۰) – هيوادمل ، زلمی ، فرهنګ ادبيات پښتو ، کابل ۱۳۵٦ ش کـال ، ۵۳ مخ .

(۴۱) – چاپي نسخه يې دښاغلی رفيع په ځاني کتابتون کې موجوده ده هم وګورئ : رفيع حبيب الله ، پښتوپانګه ، دوهم ټوک ، کـابل ۱۳۵٦ ش کـال ٦۹۴-٦۹۵ مخونه .

(۴۲) – رفيع ، حبيب الله پښتوپـانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ۱۳۵٦ ش کـال ، ۴۱۸مخ ، ٦۹۱ پرله پسې نمبر .

(۴۳) - وګـ:دپورتني اخځ ۷۱۸-۷۲۰ مخونه ، ۱۱۹۴ پرله پسې نمبر .

(۴۴)- رفيع حبيب الله ، ادبي ستوري ، دوهــم ټوک کـابل ۱۳۵۹ش کـال ، ۱۹۸-۲۰۵ مخونه .

(۴۵)- رفيع ، حبيب الله ، ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، کابل ۱۳۵۹ش کـال ، ۱۸۷-۱۹۵ مخونه .

(۴٦)- رفيع ، حبيب الله ، ادبي ستوري ، لومړی ټوک ، کابل ۱۳۵۳ ش کـال ، ۱۱۴-۱۲۱مخونه .

(۴۷)- اثر عبدالحليـم ، تيرهـير شـاعران ، پيـښور ،۱۹٦۲ م کـال ، ۲٦۳-۲٦۴ مخونه .

(۴۸) – هيوادمل ، زلمی ، فرهنګ و زبان وادبيـات پښتـو، کـابل ، ۱۳۵٦ش کال ، ۱۸۷ مخ .

( ۴۹) - رفيع ، حبيب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ ش کـال ، ۴۱٦مخ ، ٦۸۸پرله پسې نمبر.

(۵۰)- رښتين ، پوهاند صديق الله ، پښتانه شعراء ، دوهـم ټوک ، کـابل ۱۳۲۱ ش کال ، ٦۳۹-٦۴۱ مخونه.

(۵۱)- هيوادمل ، زلمی ، فرهنګ زبان وادبيات پښتو ، کابل ۱۳۵٦ ش کـال ، ۲۲۱-۲۲۲مخونه .

(۵۲) - پښتـو ټولنـه ، دزيـرې کـالنۍ، کـابل ، ۱۳۵۷ش کـال ، ۲۹۷ مـخ اودهمدې مخ پاڼليک .

(۵۳) - رفيع ، حبيب الله، ادبي ستوري ،دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۹ش کال، ۲۴۹-۲۵۵ مخونه .

(۵۴) - رفيع، حبيب الله پښتو پانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال ، ۴۲۱ مخ ، ٦۹٦ پرله پسې نمبر .

(۵۵) - دملا نعمت الله او دهغه دچاپي آثارو په برخـه کـې دز يات تفصيـل لپاره وګورئ : رفيع ، حبيب الله ، په پښتو کې دزياتوچاپي آثارو تښتن ملانعمـت الله ، "جمهوري پلوشه" ۱۳۵٦ش کال ، دوهمه ګڼه ، ۲۱-۳۳ مخونه .

(۵٦) - رفيع ، حبيـب الله ، ادبـي سـتوری ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵۹ش کال، ۲٦۰-۲٦۱ مخونه .

(۵۷) - رفيع ، حبيب الله ، پښتوپانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال، ۷۱۸مخ ، ۱۱۹۲پر له پسې نمبر .

(۵۸) - اثر ، عبدالحليم ، تير هير شاعران ، پيښور، ۱۹٦۳م کال ، ۳۸۴ مخ .

(۵۹) - هيوادمل ، زلمـی ، فرهنـګ زبـان وادبيـات پشتو، کـابل ، ۱۳۵٦ش کال، ۵۳ مخ .

(٦۰) - رفيع ، حبيب الله ، ادبـي ، سـتوری ، لومړی ټوک ، کـابل ۱۳۵۳ش کال ، ۱۳۲-۱۳۸مخونه .

وګ: رفيع ، حبيب الله ، پښتو کتاب ښود، کابل ، ۱۳۵٦ش کال ، ۴۲مخ .

(٦۱) - رفيع ، حبيب الله ، پښتوکتاب ښود، کابل ، ۱۳۵٦ش کال ، ۴۲مخ.

(٦۲) - رفيع ، حبيـب الله ، ادبـي سـتوری ، لومړی ټوک ، کـابل، ۱۳۵۳ش کال ، ۱۲۲- ۱۲٦مخونه .

(٦۳) - دکتاب دنظمولونيته داسې بيانوي :

داکتاب مې ماخستن کې کړ تيار ‐ مزدوري کې دحضرت غواړم ديدار

چې ځان خاص دعلي ددرملګ کړ ذيقعدې په دوه ويشتم مې تمام جنګ کړ وکړ دپورتني اخځ ، د ۱۲۳ مخ پايليک .

(٦۴) - رفيع ، حبيب الله ، پښتوپانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ ش کـال ٦۸۹-٦۹۰مخونه ، ۱۱۴۴ پرله پسې نمبر .

(٦۵) - رفيع ، حبيب الله ، پښتوپانګه ، دوهم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال ، ۷۱۸-۷۱۹مخونه ، ۱۱۹۲ پرله پسې نمبر .

(٦٦) - پښتـوپـانګه ، دزيـرى کـالنۍ، کـابل ، ۱۳۵۷ش کـال ، ۲۳۹- ۲۴۱ مخونه.

(٦۷) - هيوادمل ، زلمی ، فرهنـګ زبـان وادبيـات پشتو ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کال ، ۳۵۴ مخ .

(٦۸) - رفيع ، حبيب الله ، ادبـي ستوری ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵۹ش کال ، ۲٦۳-۲٦۷ مخونه.

(٦۹) - بينوا ، عبدالروف ، اوسني ليکوال ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۴۰ش کـال ، ۴۸- ۵۳ مخونه .

(۷۰) - ددې اثر متن په ۱۳۰۲ ش کال چاپ شوی چـې دنسخې دنيمګړتيالـه امله دچاپ ځای نه څرګنديږي .

(۷۱) - رفيع ، حبيب الله ، ادبي ستوری ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۹ش کـال ، ۲٦۸-۲۷۱مخونه .

(۷۲) - رفيع ، حبيب الله ، پښتو پـانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال ، ۷۱۹مخ ، ۱۱۹۳پرله پسې نمبر .

(۷۳) - رښتـين ، پوهـاند صديـق الله ، پښتانـه شـعراء ، دوهـم ټوک ، کـــابل ، ۱۳۲۱ش کال ، ٦۲۸-٦۲۹ مخونه .

(۷۴)- رفيع ، حبيـب الله، پښتـو پـانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال ، ٦۹۸-٦۹۹ مخونه ،۱۱۵۹پرله پسې نمبر.

(۷۵)- رفيع ، حبيب الله ، پښتوپـانګه ، لومړی ټوک ، کـابل ، ۱۳۵۴ش کـال ، ۲۲۷مخ ، ۳٦۱ پرله پسې نمبر .

(۷٦) - رفيع ، حبيـب الله ، پښتـوپـانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال، ٦۹۹-۷۰۰ مخونه ، ۱۱٦۱پرله پسې نمبر .

(۷۷) - رفيع ، حبيـب الله ، پښتـوپـانګه ، دوهـم ټوک ، کـابل ، ۱۳۵٦ش کـال، ٦۵۹مخ ، ۱۰۹۲پرله پسې نمبر .

(۷۸) -- رفیع ، حبیب الله ، پښتوپانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ش کال،٦۹۲مخ ، ۱۱۴۸ پرله پسې نمبر .
(۷۹) -- رفیع ، حبیب الله ، پښتوپانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ش کال، ٦۹۹مخ ، ۱۱٦۰پرله پسې نمبر .
(۸۰) -- رفیع ، حبیب الله ، پښتوپانګه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ش کال،٦۴٦ ، ۱۰٦۸ پرله پسې نمبر .
(۸۱) -- رفیع ، حبیب الله ، پښتوپانګه ، لومړی ټوک ، کابل ،۱۳۵۴ش کال،۲۴۴ مخ ۳۹۱ پرله پسې نمبر .
(۸۲) -هیوادمل ، زلمی ، فرهنګ زبان وادبیات پشتو ، کابل و ۱۳۵٦ش کال ، ۱۸۵مخ . په همدې موضوع کې دزیات معلومات په خاطر دالاندې اخځ هم وګورئ : خدمتګار ، څیرندوی عبدالله ، پښتانه شعراء ، څلورم ټوک کابل ۱۳۵۷ش کال ، ۱۲۱۵-۱۲۵۵مخونه .
(۸۳) - رفیع ، حبیب الله، پښتوکتاب ښود، کابل ، ۱۳۵٦ش کال ، ۱۱٦مخ .
(۸۴) - هیوادمل ، زلمی؛ میرحیدر ناظم ، "کندهار" مجله ، ۱۳۵۴ش کال ، غبرګولی ګڼه ، ۲۲ مخ .
(۸۴)- خلیق . عبدالخالق ، "زه اوزما زمانه " پېښور ، ۱۹٦۸ م کال .

# پښتو دیارلس هجایي مثنوي او دهغې تاریخي سیر

دپښتو دیارلس هجایي مثنوي کې فشار په لومړنـــی ،پنځمـه، نهمـه او دیارلســمه هجا باندې راځي . تراوسه پورې چې دمثنوي په باب ماپه پښتـو ادب کـې دفاضل استاد پوهاند رشاد په لارښوونه تحقیق او څېړنه کړیده .له دیـارلس هجـایي مثنـوي سره یو ځای هغه هم دمحمد امین تهکالی د ( بخت نامه جدیـد) ترعنـوان لانـدې منظوم اثر سره مخامخ شوی یم چې ددې منظومې فورم دقافیوي رعایت په اســاس دیارلس هجایي مثنوي دی . چې ناظم یې محمد امین تهکالی دی بـل مثـال یـې ماپیدا نکړی شو .

محمد امین ددیني عالمانو څخه و، ددیارلسمې هجري پیړۍ په اواخرو کې یې دپېښور په تهکال کې ژوند کاوه نوموړی ډېر دیني او فقهي اثار له پارسي څخـه پـه پښتو نظم اړولی دي . دی خپل ځای او ځان داسې معرفي کوي .

ځای زما تهکال یادیږي      له خلیلو حسابیږي

پلارنیکه مې حافظان وو      په تهکال کې ساکنان وو ( ۱ )

دادی دفاضل استاد په لارښوونه دپښتو دیارلس هجایي مثنـوي عروضـي بـڼه او تقطیع دسیلابو تونیک سیستم له مخې پهٔ لاندې ډول راوړم :

-ں ں ں | -ں ں ں | -ں ں ں | -||

دادی دمحمدامین تهکالی د ( بخت نامه جدید) څو بیتونو درکنونو تقطیـع پـه لاندې ډول لیکم :

| | | | |
|---|---|---|---|
| -ن ن ن | -ن ن ن | -ن ن ن | - ‖ |
| راشه‌زما | بخته‌پ حر | مت‌درب‌جلیـ | ـل ‖ |
| بې‌له‌تازه | گرځم‌به‌عا | لم‌کې‌خوار‌ذ | لیل ‖ |

لاندې بیتونه هم ددیارلس هجایي مثنوي بیلگه ده چې پـه پورتـه ډول تقطیـع کیږي :

راشه زما بخته په حرمت دپاک غفار	بې له تانه وران دی په هر ځای کې زما کار
راشه زما بخته په تندی زما په لور	تول مال مې دکور خې چې ته نه یې زما په کور
راشه زما بخته په حرمت دابراهیم	هم داسماعیل اسحق یعقوب واړه فهیم
راشه زما بخته په حرمت دلوح قلم	هم دعرش کرسی مزکې آسمان ورسره سم
راشه زما بخته په حرمت دجبرائیل	هم دمیکائیل داسرافیل دعزرائیل
بس مې داویل شو پسې نه کړمه بیان	لږ ویل ډیرښه دي پرې پوهیږي عاقلان

ماخځ :

(۱)- هیوادمل ، زلمی ، فرهنګ زبان وادبیات پشتو، ج ۱ ، کابل ، ۱۳۵٦ش کـال ، ۴۳۳ مخ .

# دپښتو خوارلس ځپيزه مثنوي او دهغې تاريخي سير

په پښتو ادب کې ترکومه ځایه چې ما دمثنوي په باب ځیړنه کړیده دخوارلس ځپیزې مثنوي سره لومړی ځل دقاضي سید مجدد ننګرهاری د ( ترجمهٔ منظومهء بحث کحل بزبان افغاني) په پښتو منظوم اثر کې مخامخ شوی یم. دده دمخه دخوارلس ځپیزې مثنوي بیلګه زما په نظر نه ده راغلې.

دسید مجدد ننګرهاری دوه منظوم اثرونه هریو ( شرح ابیات شرح ملا جامي ) او (ترجمهٔ منظومه بحث کحل بزبان افغاني) دواړه په یوه وقایه کې په ١٦ مخونو کې دهند و پریس په مطبعه کې دپیاري لال په اهتمام په ١٣٠٨ کال چاپ شوی دی چې چاپي نسخه یې د ښاغلي رفیع په ځاني کتابتون کې موجوده ده.

شرح ابیات شرح ملا جامي دچاپي نسخې داول مخ څخه شروع کیږي او تر ١۴ مخ پورې دوام کوي. ترجمه منظومه بحث کحل بزبان افغاني د ١۴ مخ څخه پیل او د ١٦ مخ دپای پورې دوام کوي. شروع یې دغزل په فورم ده او دچاپي نسخې په ١۵ مخ کې د ( نحو رطل ریتاء) ترعنوان لاندې خوارلس ځپیزه مثنوي شروع کیږي.

( شرح ابیات شرح ملا جامي ) اوږده شپاړلس ځپیزه مثنوي ده چې پخپل ځای به دهغې په باب یادونه وشي دپورتنیو اثرونو ویونکی سید مجدد ننګرهاری دی چې په ١٢٨٧ ه ق کال دننګرهار په روداتو کې زیږیدلي او په ١٣۴٧ هـ ق کې مړ شوی دی. نوموړی په منطق، فقه، صرف، نحو، ریاضي او اخلاق کې ښه معلومات درلودل مذهبي شعرونه یې ویلي او دیني مسایل یې په پښتو نظم اړولي دی. شرح ابیات ملا جامي او رساله ( کحل) دده له تالیفاتو څخه دي. (١)

په خوارلس هجایي مثنوي کې فشارپه دوهمه، شپږمه، لسمه، او خوارلسمه هجاباندې راځي او عروضي بڼه او تقطیع یې دسیلابو تونیک سیستم له مخې په لاندې ډول ده:

خوارلس هجايي مثنوي : ں - ں | ں ں - ں | ں ں - ں | ں ں - ||

دادې دنومړی منظومې رسالې دځو بيتونو درکنونو عروضي تقطيع پـه لانـدې ډول دپوهاند رشاد په لارښوونه راوړم :

| | | | |
|---|---|---|---|
| تفضل به | خود عمل کــــوی تميز کې | | په سرعت |
| چې نشته | په کې يوټي د | فعل ونه | کړې غفلت |
| شارح عــ | ـليه رحمه بنه | جوابونه | وکړه سم |
| خودچپ شو | معترض په | خپل ځای کښيناسـ | ـته بې غم |

دادې دهمدې پورتنی منظومې څو بيتونه چې عروضي تقطيع يـې دپورتـه پـه شان کيږي ، راوړم :

خوشــــحال دې مصنــــف وي دشــــبهونه شــــو دې خـــلاص
شــارح چـــې وي ملــګرى هيــخ دې نــه کـــوی وســـواس
بيـــا راغـــى معـــترض کـــوى پوښتنــــه ددليـــــل
عمـــل ولـــې مظـــهر مرفـــوع کـــې نـــه کـــاندې تفضيـــل
ســـبب يـــې درنـــه غـــوارم جـــواب راکـــه پـــه تلـــوار
زه يمـــه معـــترض رانـــمه-بـــه چيرتـــه شـــې قـــرار
شـــارح وايـــې جـــواب دى واخلـــه خلـــه کـــوې شـــور
غـــور کيـــنږده راتـــه ســـم ســـترګې بينـــا کـــړه نـــې شـــبکور
تفضيـــل نـــه کـــه عقـــل دفعـــل زه يم تـــرې خـــبر
چـــې نشـــته دتفضيـــل ســـره هيـــخ فعـــل برابـــر
جـــواب وکـــړ شـــارح شـــرح ملاکـــې بنه ســـمبال
روان شـــو معـــترض دلـــګير خفـــه پـــه زړه مـــلال
بياهســـې مســـبب چـــې مفضـــل وي نـــن زمـــان
جـــاري وي پـــه اول اعتبـــار دى پـــه ډيـــربنه شـــان
بيـــا هغـــه اســـم تفضيـــل چـــې وي منفـــي وايم حـــال
عمـــل بـــه کـــا مرفـــوع مظـــهر کـــې هلتـــه بـــې جنجـــال
رجـــل اوس دى پوشـــي هســـې شـــې واوره داکـــلام
چـــې دى اســـم تفضيـــل دده صفـــت لفـــظ کـــې مـــدام

همدارنګه سید عبدالغفار پخپل منظوم اثر (ګلشن رنګین) کې چې دمولوي عبدالخالق الخاص د(استقلال) دمنظومي سره یو ځای په یوښتی کې په ۱۳۰۲ هـ ش کې چاپ شوی او زړه چاپي نسخه یې دبناغلی رفیع سره موجوده ده. دچاپي نسخې ۸۰ مخ چې دګلشن رنګین لومړی مخ کیږي،په څوارلس څبیزه مثنوي کې ویل شوی دی. دګلشن رنګین دڅوارلس څپیزې مثنوي دپیل بیتونه دادي:

لایق حمد ثنا دی په درګاه دذوالجلال خالق دکل جهان دی چیرته نه لري مثال
سلطان دبحروبر دی بې وزیره بې چګون ظاهرې تول عالم کړ په ارشاد دکاف ونون
درود په پاک رسول وایم بې حده لا معدود یونوم یې محمد دی بل احمد او بل محمود
لري څلوریاران چې یو صدیق دی بل عمر عثمان یارېې دریم دی څلورم علي حیدر
رحمت وکړې خاونده په یارانو درسول په وارو مومنانو دادعایې کړې قبول

## مآخذ:

(۱)- هیوادمل ، زلمی . فرهنګ زبان وادبیات پښتو، جلداول ، کابل ۱۳۵٦ش کال ، ۲۴۰ مخ .

# پښتو شپاړس هجايي مثنوي او دهغې تاريخي سير

په پښتو اوږده يعنې شپاړلس هجايي مثنوي کې عموماً فشار په دريمه اوومه يوولسمه او پنځلسمه هجاء باندې راځي. ددې مثنوي دهربيت نيم بيتي کلمه شپاړس او کله پنځلس هجاوې لري يعنې کله دهربيت دهجاوو شمير (١٦+١٦) او کله (١٥+١٥) وي. داپه کې شرط ده چې دبيت دواړه نيم بيتي به دهجاوو دشمير له پلوه سره مساوي وي.

داوږدې مثنوي لومړنۍ بيلګه دامانت مليار په (قصه شهزاده دل افزا او شهزادۍ دل افروز) کې ګورو. دامانت مليار دژوندانه زمانه ددېارلسمې پېړۍ اواخر اټکل کيږي. نوموړی ديوسف زو په سيمه کې دمېنۍ په کلي کې ژوند کاوه او دعوامو په ډله کې ددېارلسمې هجري پېړۍ په اواخرو کې، داستان ويونکی شاعر تير شوی دی. (١)

امانت مليار پورتنی منظومه قصه دغزلو. قصيدې دولس هجايي مثنوي او شپاړلس هجايي مثنوي په چوکاټ کې نظم کړې او دقصې تسلسل يې په نوموړو فورمونو کې ساتلی دی. دامانت مليار دغه منظومه کيسه په ١١٢ مخونو کې دميا حاجي حمدالدين او محمدنظير له خواپه ١٣٢٢ ه ق کال په لکشمي ستيم پريس لاهور نه خپره شوې ده. (٢)

ددې منظومې کيسې د ٧ مخ څخه تر ٩ مخ پورې او همدارنګه د ٨٣ مخ څخه تر ٨٤ مخ پورې دمنظومې فورم اوږده مثنوي ده.

داوږدې مثنوي عروضي بڼه او تقطيع دسيلابونو تونيک سيستم له مخې په لاندې ډول ده:

الف: شپاړس هجايي

ں ں - ں | ں ں - ں | ں ں - ں | ں ں - ں ||

ب : پنځلس هجایي

∪ ∪ – ∪ | ∪ ∪ – ∪ | ∪ ∪ – ∪ | ∪ ∪ - ||

دادی دفاضل استاد پوهاند رشاد پـه لاربنوونـه دخو بنئونـو درکنونـو عروضـي تقطیع په لاندې ډول راوړم :

| | | | |
|---|---|---|---|
| بوډۍ ووې | شهزاده ته | ته غم لرې | کړه له دله \|\| |
| څه دې غم دی | څله غم کړې | غرضي دې | شوه بلبله \|\| |
| که دې ولیـ | ـده په سترګو | سیال یی نشته | په عالم کې \|\| |
| زوړ دحسن | یی خور شوی | په عرب او | په عجم کې \|\| |
| هسې رنګ له | په قد سمه | شرموې سر | وې قجورې \|\| |
| ملاقات ته | یی مشتاقې | دفردوس د | جنت حورې \|\| |
| تور اوربل چې | په قمر جبـ | ـین که خور لـ | ـکه دوریځ \|\| |
| ته به وایې | چې ملاحاشیـ | ـی لیکلي | په کاغذ \|\| |

په همدې ترتیب ملا عبدالباقي افغان چـې دعبدالرسول اخوندزاده زوی او دمحمود لمسی و . عبدالباقي یـو متشرع او دینـي عـالم و . نومـوړی دخوارلسمې هجري داولې نیمایي یو پښتون شاعر تیر شوی دی .دې په پښتو ادب کـې لومړنـی سړی دی چې یو مستقل اثـر یـې پـه اوږده مثنوي پـه پښتـو د ( تبیین الواجبات لتخریب العادات ) په نامه منظوم کړی چې دبیتونو شمیر یې (۵۷۰۷) ته رسیږي . پـه دغه منظوم اثر کې علاوه داوږدې مثنوي ځینـي نورشعري فورمونـه ،لکـه غـزل او رباعي هم لیدل کیږي . ددې منظوم اثر عنوانونه په دري دي او پـه ځینـو ځایونـو کې آیات او احادیث دي چې دهغوی تشریح یې په پښتو نظم دمثنوي په بـڼه کـړې ده . دی دبې ځایه عادتونو او رواجونـو سـخت مخـالف و او ددې مطلـب دتبلیغ دپاره یې نوموړی اثر منظوم کړی دی . پښتانه شعراء دوهم ټوک په (۶۷۳) مخ کـې . دملا عبدالباقي ژوند تر ۱۳۱۹ هـ ق کال پـورې ښودل شـوي دی ، ولـې پـه هغـه عالمانه مقاله کې چې فاضل استاد پوهـاند رشـاد د (عبدالبـاقي کـاکړ او عبدالبـاقي افغان یو سړی دی ) ترعنوان لیکلی او دجمهوري پلوشه په دریمـه ګڼه ۱۳۵۶ هـ ش کال خپره شوې ده . نوموړی فـاضل اسـتاد لیکلـي چـې مـلا عبدالبـاقي پـه خـټه کندهاری کاکړ و چې ( افغان ) تخلص یې کاوه . نوموړی ۱۳۴۴ هـ ق کال درجـب دمیاشتې په دولسمه نیټه دسه شنبې په ورځ پـه کندهـار کـې مړ او خپلـې پلارنـی هدیره کې خاوروته سپارل شوی دی .

دده دغه منظوم اثر کلـه پـه دوونومو( تـهذیب الوجبـات ) و ( تبـین الوجبـات لتخریب لعادات ) یادشوی دی . کومه چاپي نسـخه چـې دکندهـاري تـاجر غـلام محمد خجندي له خواپه ۱۳۴۱ هـ ق کې په لاهور کې چاپ شوې ده. دکتـاب نـوم تبیین الواجبات التخریب العادات ایښودل شوی دی چې دواړه نسخې پـه ترتیـب او عناوینو کې ورته دي .

دپښتانـه شـعراء دوهـم ټوک لیکنـه پـه نـورو کتـابونو ،لکـه پښتـو ادب تـاریخ ، افغانستان نومي کتاب او آریانا دایره المعارف کې عنعنـوي نقـل شـوی او حتـی پـه آریانا دایرة المعارف کې دغه تیروتنه دومره زیاته شوې چې یواځـر پـه دوو نوموکـې ددوو کسانو تالیف ګڼل شوی دی . واقعیت دادی چې ددې اثر مولف یـو سـړی ، هغه هم ملا عبدالباقي افغان دی . (۳)

ددې منظوم اثر څلور عنوانونه مخکې له چاپ څخه پـه سـراج الاخبـار کـې د ۱۲۹٦ کال په پنځمې ، شپږمې ، لسمې ، یوولسمې او څوارلسمې ګڼوکې خپاره شوي دي . دسراج الاخبار په پنځمه ګڼه ۲۵ دمیزان ۱۲۹٦ هـ ش کـال ( داسـلام وپادشـاه ته دعا) تر عنوان لاندې خپور شوی دی . (۴) زه هم ددې پورتنی خپور شوي نظـم څو بیتونه دبیلګې په توګه راوړم :

ضیـــاء الملتــــه والدیـــــن دې لــــه غفرانــــه بـــــهره ورســـــي
هغــــه څوک چــــې خلیفــــه دی پـــــه قــــرآن دې منورســــي
فخـــر دیـــن شـــمع دولـــت د احمـــدي ملـــت ســـراج
دخلـــت پـــه خلفـــت نباد ســـه ، لـــه حکمتـــه یـــې ســـه تـــاج
کـــوز دې نـــه ســـي تخـــت وتـــاج لـــه چـــې جوړســـوی لـــه ســـرابه
عـــالي خیـــال دې کوثـــر مومـــي چـــې مخلـــوق ســـي پـــه ســـیرابه
تـــه راضـــي ســـې پـــه دوه کونـــه میســـر دهـــر عمـــیره
لـــه امـــیر ابـــن الامـــیر ابـــن الامـــیر ابـــن الامـــیره
ښه امـــیر حبیـــب الله تـــه کســـب وکـــار دحبیـــب ورکـــه
معـــاون دې نصـــرالله ـــــي پـــــه نصـــرت یـــې مظفرکـــه
پـــه اتبـــاع دښه وزیـــر چـــې یادســـو دوی ثـــاني اثنـــین
مزیـــن متدیـــن شـــه بـــهما والحســـنین
حبیـــب ګوري لـــه یثربـــه هرســـاعت تاتـــه ای لـــوړه
ســـرچشـــمه داســـلام تـــه یـــې حـــق تعـــالی دې مکـــړه خـــره
امـــت بـــاغ دمصطفـــی دی ســـرچشـــمه یـــې شـــو افســـر

سـردې مـه شـه کـوږ لـه مـوږه پـه حضـور دپيغمـبر
دتمـام امـت بابـا شـوی تـرزاږه واږه هلکـه
سـتا عـزت دې آسـماني وي نـاز دې مـه لويـږي پرزمکـه
يـاالله العـالمين پـه طفيـل دمصطفـى
شـه خـادم دشـريعت چـې جـهان شـي صفـا

په همدې ترتيب له عبدالباقي افغان خخه وروسته بل پښتو ن شاعر سيد مجدد ننګرهاري دی . نوموړی دخوارلسمې هجري پيړی داواسطو شاعر تـير شـوی دی . سيد مجدد ننګرهاري د ( شرح ابيات شرح ملا جامي) ترعنوان لانـدې منظومـه پـه شپاړس هجايي اوږده مثنوي نظم کړې ده . دسيد مجدد معر في په مفصلـه تـوګه په خوارلس څپيزه مثنوي کـې شـوې ده . دلتـه دده دپورتنـی منظومـې دشپاړس هجايي اوږدې مثنوي څوبېتونه دبيلګې په توګه راوړم :
زخمونـو دنـيزولره صحـت شـته زمـا جانـه
مـولی چـې وکـه فضـل پرهـرروغ کـه بـې نقصانـه
يوعـدل دويم وصـف هـم تـانيث معرفـه ځوانـه
پـه شـمار پـوره خلـور دا يـادلره نـه شـي سـتومانه
اتـم نـون دی زيـاتي بيـا چـې الـف پـرې مقـدم وي
چـې دوی پـه چـاکې وي او دی صفـت اويـاعلم وي
بـهتر يـو مـوږ پـه نـزد دخلقـو تاسـونه ځوانـانو
سـيالي راسـره مـه کـوئ خبرشـئ عزيزانـو
کـه نـه ويريـدې رب نـه زرخـبر شـئ لـه دې حالـه
پروامـې نـه وی هيـڅ نـه دثـواب او دوبالـه
بـارکړي مـې پـه ځان دي سـتا غمونـه اې محبوبـې
ذليـل دی کـه قلـوب زمـا فريـاد کـوم مرغوبـې
اې دواږومزدورانـو تاسـې لاږشـئ پـه فـرار
خـبر شـئ ځان محکـم کـړئ تيښتـه بيانـه کـړئ اختيـار
ودې نـه غـورځوي تاسـې پـه بـدی کـې خپـل عمـر
پښيمانـه بـه شـئ اږه کـه مـې وايسـته خنجـر
تحقيـق دغـه اوبـه زمـا دپـلار او دجـددي
هـر خوک چـې بيـا دعـوې کـا دعـوې واږه ددوی رد دي

چې قصدمې دکار نیک دی که مې توان وشي ای جانه
لیکن نشته قدرت زما دلګیرګرځم بیشانه
قسم کوی په خدای سره بو حفض چې عمر دی
مشهور په درست جهان چې دویم یار دپاک سرور دی .

## مآخذونه :


(۱) - هیوادمل ، زلمی ، فرهنګ زبان وادبیات پښتو جلد۱ . کابل ۱۳۵٦ ، ۵۳ مخ .

(۲) - رفیع ، حبیب الله ، پښتو پانګه ، دوهم ټوک ، کابل ۱۳۵٦ ش کال ، ٦۹۴-٦۹۵ مخونه ، ۱۱۵۲ پرله پسې نمبر .

(۳) - رشاد، پوهاند عبدالشکور ، ( عبدالباقي کاکړ او عبدالباقي کندهاری یوسړی دی ) د " جمهوري پلوشه " (مجله) دریمه ګڼه ، کابل . ۱۳۵٦ش کال ، ۳۰-۳۳ مخونه .

(۴) - سراج الاخبار . پنځمه ګڼه ، د ۱۲۹٦ کال دبرات ۲۵ ، چې د ۱۹۱۷م کال د اکتوبر دمیاشتې ۱۸ سره سمون خوري .

# اخځونه

الف : چاپي آثار :

۱ بریګنسکي . ( آثار منظوم رودکي باترجمه روسي) ، مسکو ، ۱۹۶۴ م کال .

۲ براون . پروفیسور اداوارد . تاریخ ادبـي ایـران ، جلـد اول ، ( از قدیمـترین روزګاران تازمان فردوسي. . دعلي پاشاصالح ژبـاړه تحشـیه او تعلیـق ) ،ابـن سینا چاپ دوم . تهران ، ۱۳۳۵ کال .

۳ براون . پروفیسور ادوارد تاربخ ادبي ایران . (از فردوسي تا سـعدي ) ( فتـح الله مجتبایي ژباړه او حواشي ) . مروارید . تهران ، ۱۳۴۱ ش کال .

۴ براون ، پروفیسور ادوارد ، تاریخ ادبي ایران ، ( ازسعدي تاجامي ) ، ( د علي اصغر حکمت ژباړه او حواشي ) ابن سینا ، چاپ دوم ، تهران ۱۳۳۹ ش .

۵ شفق ، داکتر رضا زاده دهرمان اته تالیف . تـاریخ ادبیـات فارسـي ،تـهران ۱۳۵۱ ش کال . ( ترجمه)

۶ صفا ، دکتر ذبیح الله ، ګنج سخن ، ( ازرودکي تا انـوري) ، جلـد اول چـاپ دوم . تهران ، ۱۳۳۹ ش کال .

۷ صفا ، داکتر ذبیـح الله ، تـاریخ ادبیـات در ایـران ، ( از اغاز عـهد اسلامي تادوره سلجوقي) ، جلد اول ، تهران ، ۱۳۳۸ ش کال .

۸ صفا ، داکتر ذبیح الله . تـاریخ ادبیـات در ایـران ، چـاپ سـوم . جلـد دوم ۱۳۳۹ ش کال .

۹ ضیف ، داکتر شوقي . فصول فی الشعرونقده ، مصر ، ۱۹۷۱ م .

۱۰ ګیلانی ، مدرس مرتضی په سمونه او کتنه . مثنوي هفـت اورنـګ جـامي ، کتاب فروشي سعدي ، چاپ دوم . ۱۳۵۱ ش کال.

١١ گنجه ای ، حکیم نظامي . کلیات خمسه ، ( مخزن الاسرار، خسرو وشیرین،لیلی ومجنون، هفت پیکر ،اسکندرنامه ) چاپخانه سپهر ، چاپ سوم ، تهران ، ۱۳۵۱ کال
۱۲ موتمن ، زین العابدین . تحول شعر فارسي ، تهران ، ۱۳۳۹ ش کال .
۱۳ نعماني ، علامه شبلي . شعر العجمْ ، جلد چهارم ، ( دسید محمد تقي فخر داعی گیلاني ژباړه ) ابن سینا ، چاپ دوم ، ۱۳۳٦ ش کال .
۱۴ اثر عبدالحلیم . تیر هیر شاعران ، پېښور ، ۱۹٦۳ م کال
۱۵ بینوا ، عبدالروف . اوسنی لیکوال ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۴۰ کال
۱٦ پښتو ټولنه ، پښتانه شعراء ، دریم ټوک ، ۱۳۴۲ کال .
۱۷ پښتو آریانا دایرة المعارف . دریم ټوک ، کابل ، ۱۳۳۷ کال .
۱۸ پښتو آریانادایرة المعارف . دیارلسم ټوک ، کابل ، ۱۳۳٦ کال .
۱۹ پښتو ټولنه ، دزیری جریده . ۱۳۵۷ کالنی
۲۰ جلال آبادی ، میا فقیرالله . فواید میا فقیرالله ، کابل ، ۱۳۵۹ کال (دپوهاند رشاد په سریزه )
۲۱ جلال آبادي ، میافقیرالله . اسماء الحسنی میا فقیرالله ، کابل ، ۱۳۵۹ کل (دپوهاند رشاد په سریزه )
۲۲ حبیبي پوهاند عبدالحی . پښتانه شعراء ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۲۰ کال
۲۳ حبیبي . پوهاند عبدالحی ، دپښتو دادبیاتو تاریخ ، دوهم ټوک ، کابل . ۱۳۴۲ ش کال .
۲۴ خټک ، سکندخان . لیلی ومجنون ، کابل ، ۱۳۵۸ ش کال ( ددوست شینواری په سریزه)
۲۵ خدمتګار خیرندوی عبدالله . پښتانه شعراء ، څلورم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۷ ش کال .
۲٦ خلیل ، همیش . ورکه خزانه ، لومړی ټوک ، پېښور ، ۱۹٦۰ م کال .
۲۷ داوي ، رحمت . لیلی ومجنون ، کابل ، ۱۳٦۰ ( دمصطفی په سمونه او سریزه )
۲۸ رشاد ، پوهاند عبدالشکور ، دخمکنو میا عمر (رح) ، کابل ، ۱۳٦۰ ش کال
۲۹ رښتین صدیق الله . پښتانه شعراء ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۲۱ ش کال
۳۰ رفیع حبیب الله . ادبي ستوري ، لومړی ټوک ، کابل ، ۱۳۵۳ ش کال .
۳۱ رفیع حبیب الله . ادبي ستوري ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵۹ ش کال .

۳۲ رفیع حبیب الله . پښتو پانگه ، لومړی ټوک ، کابل ۱۳۵۴ ش کال .

۳۳ رفیع حبیب الله . پښتو پانگه ، دوهم ټوک ، کابل ، ۱۳۵٦ ش کال .

۳۴ رفیع حبیب الله . پښتو کتاب ښود ، کابل ، ۱۳۵٦ ش کال .

۳۵ کندهاري ، مولوي صالح محمد . پښتو مثنـوي ، کـابل ، ۱۳۵۰ ش کال . ( دپوهاند حبیبي په سریزه ).

۳٦ اخلاص مولوي عبدالخالق ، استقلال ، دچاپ ځای (؟) دچـاپ کال (؟)

۳۷ سیدعبدالغفار ، گلشن رنگین ، دچاپ ځای (؟) ، دچاپ کال(؟)

۳۸ ننگرهاری ، سید مجدد ، شرح ابیات شـرح مـلا جـامي بزبـان افغاني – پخوانی هند ، هندوپریس ، ۱۳۰۸ کال .

۳۹ ننگرهـاری ، سـید مجـدد ، منظومـه کحـل بزبـان افغـاني ، پخواني هند ، هندوپریس ، ۱۳۰۸ کال

۴۰ هوتک ، محمد بن داود ، پټه خزانه . څلـورم چـاپ ، ادبیـاتو پوهنځی ۱۳۵٦ کال .

۴۱ هیوادمل ، زلمی ، فرهنگ زبـان وادبیـات پښتـو ، جلـد اول ، کابل ، ۱۳۵٦ کال .



## ب : لاسکښنې ( قلمي ) :

۱: خټک ، خوشحال خان . اخلاق نامه . ( قلمي نسخه )

۲: خټک ، خوشحال خان ، فراق نامه . ( قلمي نسخه )

۳: ماشوخیل ، حمید ، شرعة الاسلام . ( قلمي نسخه )

۴: ناظم ، میر حیدر ، دپښتنو منظوم تاریخ داسلام له محه تر امـیر شـیر علیخـان پورې په اتو ټوکو کې ( قلمي نسخه )

## ج : لیکنې ( مقالې ) :

۱: بریښ : " مولوي احمد دتنگی " کابل مجله . دریمه گنه . ۱۳٦۰ ش کال .

۲: رفیع ، حبیـب الله " پـه پښتـو کـې دزیـاتو آثـارو تښتـن مـلا نعمـت الله " جمهوري پلوشـه . ( دوه میاشـتنی خپرونـه ) . دوهمـه گنه . دغـبرگولی او چنـگاښ دمیاشتې کابل ، ۱۳۵٦ ش کال .

۳: رشاد ، پوهاند عبدالشکور ، ورکه خزانه . ( ورمه ) پنځمه [illegible]شپږمه گنه ، ۱۳۳۸ ش کال .

۴ رشاد ، پوهاند عبدالشکور : " احمد اخون خیل اواحمد دپچگی یوسړی دی زیری ( جریده ) دتلې دمیاشتې شپږمه نیټه ، ۲۷ گڼه ، ۱۳۵٦ ش کال .
۵ : رشاد ، پوهاند عبدالشکور : " عبدالباقي کاکړ او عبدالباقي کندهاري یو سړی دی " جمهوري پلوشه ، دریمه گڼه ، ۱۳۵٦ ش کال .
٦: رشاد ، پوهاند عبدالشکور : " دشاهنامې ناظم او شاهنامه " وږمه ، کابل ، ۱۳۴۰ ش کال .
۷: رشاد ، پوهاند عبدالشکور : دامیرعلي شیر ( میزان الاوزان ) او دهغه په باب دمولف او بابر ترمنځ محاکمه " ، کابل مجله ، پنځمه گڼه ، ۱۳٦۰ ش کال .
۸: هیوادمل ، زلمی : " میرحیدر ناظم " کندهار . دغبرگولی گڼه ، ۱۳۵۴ ش کال .

*Serial No: 7*

# *Historical Background and Developmental Process Of Masnavi in Pashto Literature*

**By**

**Associate-Professor Jalaluddin**



**Published**

**By**

**Afghanistan Study Center (ASC)**

**Peshawar** 1999-
**Copies** 2000-